


**د پوهنې وزارت**
د تعليمي نصاب، د ښوونکو د روزنې
او د ساينس د مرکز معينيت
د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي
کتابونو د تاليف لوی رياست

# پښتو

## شپږم ټولګی



د چاپ کال: ۱۳۹۰ هـ . ش.




**د پوهنې وزارت**

د تعليمي نصاب، د ښوونكو د روزنې
او د ساينس د مركز معينيت
د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي
كتابونو د تاليف لوی رياست

# پښتو

## شپږم ټولګی

**د چاپ كال: ۱۳۹۰ هـ. ش.**

# د کتاب د تألیف، څېړنې او تدقیق کمیټې

**لیکواله:**

– د مؤلف مرستیاله فروزان خاموش د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف ریاست د پښتو دیپارټمنټ غړې.

**تایید او مطالعه:**

## ملي شورا

د ولسي او مشرانو جرګو د دیني چارو، پوهنې او لوړو زده کړو د کمیسیونونو غړي.

## د څېړنې او تدقیق کمېټې

### کابل پوهنتون

– پوهندوی محمد رفیق رفیق د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو د پوهنځي د پښتو دیپارټمنټ استاد.

### علومو اکاډمي

– سر څېړونکی عبدالواجد واجد د افغانستان د علومو د اکاډمۍ د ژبو او ادبیاتو د مرکز رئیس.

### د پوهنې وزارت

۱. د سر مؤلف مرستیال سید محمود کارګر د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونود تالیف ریاست د پښتو دیپارټمنټ علمي او مسلکي غړی او د دې کتاب ایډیټ کوونکی.
۲. د سر مؤلف مرستیال امین الله نژند د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونود تالیف ریاست د پښتو دیپارټمنټ آمر.
۳. د مؤلف مرستیال محمد عزیز تحریک د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونود تالیف ریاست د پښتو د یپارټمنټ علمي او مسلکي غړی.
۴. د مؤلف مرستیال محمد سهراب دیدار د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونود تالیف ریاست د پښتو دیپارټمنټ غړی.
۵. محمد عزیز حسین خېل د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونود تالیف ریاست د پښتو دیپارټمنټ غړی.
٦. سیف الرحمن آشنا د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونود تالیف ریاست د پښتو دیپارټمنټ ادیټور.
۷. پلوشه د عاشقان او عارفان د لیسې ښوونکې.

انځورګران: نفیسه پوپلزۍ او محمد غالب الله یار.

**د محتویاتو، دیني، فرهنګي او سیاسي برخو د څېړنې او کره کتنې کمیټې:**

– ډاکټر عطاء الله واحدیار د پوهنې وزارت ستر سلاکار او د نشراتو رئیس.
– دوکتور محمد یوسف نیازی د پوهنې وزارت سلاکار.

**د څېړنې او تدقیق د څارنې کمیټه:**

– دکتور اسدالله محقق د تعلیمي نصاب د پراختیا، د ښوونکو د روزنې او د ساینس مرکز معین
– دکتور شېر علي ظریفي د تعلیمي نصاب د پراختیا د پروژې مسؤول
– د سرمؤلف مرستیال عبدالظاهر ګلستاني د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی رئیس

**کمپوز او ډیزاین:**

نصرالدین (ناصر) او حمید الله (غفاري)



# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی — دا عزت د هر افغان دی

کور د سولې کور د تورې — هر بچی يې قهرمان دی

دا وطن د ټولو کور دی — د بلوڅو د ازبکو

د پښتون او هزاره وو — د ترکمنو د تاجکو

ورسره عرب، ګوجر دي — پاميريان، نورستانيان

براهوي دي، قزلباش دي — هم ايماق، هم پشه يان

دا هيواد به تل ځليږي — لکه لمر پر شنه آسمان

په سينه کې د آسيا به — لکه زړه وي جاويدان

نوم د حق مو دی رهبر — وايو الله اکبر وايو الله اکبر

**بسم الله الرحمن الرحيم**

**د پوهنې د وزیر پیغام**

**ګرانو ښوونکو او زده‌کوونکو،**

ښوونه او روزنه د هر هېواد د پراختیا او پرمختګ بنسټ جوړوي. تعلیمي نصاب د ښوونې او روزنې مهم توکی دی چې د علمي پرمختګ او ټولنې د اړتیاوو له مخې رامنځته کیږي. څرګنده ده چې علمي پرمختګ او ټولنیزې اړتیاوې تل د بدلون په حال کې وي. له دې امله لازمه ده چې تعلیمي نصاب هم علمي او رغنده انکشاف ومومي. البته نه ښايي چې تعلیمي نصاب د سیاسي بدلونونو او د اشخاصو د نظريو او هیلو تابع شي.

دا کتاب چې نن ستاسو په لاس کې دی، پر همدې ارزښتونو چمتو او ترتیب شوی دی. علمي ګټورې موضوعګانې پکې زیاتې شوې دي. د زده کړې په بهیر کې د زده کوونکو فعال ساتل د تدریسي پلان برخه ګرځېدلې ده.

هیله من یم دا کتاب له لارښوونو او تعلیمي پلان سره سم د فعالې زده کړې د میتودونو د کارولو له لارې تدریس شي او د زده‌کوونکو میندې او پلرونه هم د خپلو لوڼو او زامنو په باکیفیته ښوونه او روزنه کې پرله پسې ګډه مرسته وکړي چې د پوهنې د نظام هیلې ترسره شي او زده‌کوونکو او هېواد ته ښې بریاوې ور په برخه کړي.

زه پر دې ټکي پوره باور لرم چې زموږ ګران استادان او ښوونکي د تعلیمي نصاب په رغنده پلي کولو کې ستره دنده او درونه مسؤولیت لري.

د پوهنې وزارت تل زیار کاږي چې د پوهنې تعلیمي نصاب د اسلام د سپېڅلي دین له بنسټونو، د وطن دوستی د پاک حس په ساتلو او علمي معیارونو سره سم د ټولنې د څرګندو اړتیاوو له مخې پراختیا ومومي.

په دې ډګر کې د هېواد له ټولو علمي شخصیتونو، د ښوونې او روزنې له پوهانو او د زده‌کوونکو له میندو او پلرونو څخه هیله لرم چې د خپلو نظريو او رغنده وړاندیزونو له لارې زموږ له مؤلفانو سره د درسي کتابونو په لا ښه تالیف کې مرسته وکړي.

له ټولو هغو پوهانو څخه چې ددې کتاب په چمتو کولو او ترتیب کې یې مرسته کړې، له ملي او نړیوالو درنو موسسو، او نورو ملګرو هېوادونو څخه چې د نوي تعلیمي نصاب په چمتو کولو او تدوین او د درسي کتابونو په چاپ او وېش کې یې مرسته کړې ده، مننه او درناوی کوم.

ومن الله التوفیق

فاروق وردګ

د افغانستان د اسلامي جمهوریت د پوهنې وزیر

# د کتاب فهرست

بسم الله الرحمن الرحیم

## لومړی لوست

# حمد



موخې:

۱. د پاک الله (جل جلاله) پېژندنه.
۲. د الله (جل جلاله) د ښې پېژندنې له پاره د دیني تعلیماتو زده کړه او لوستل.
۳. د شعر او بیتونو لوستل او لیکل.

هڅوونکې پوښتنې:

۱. موږ چا پیدا کړي یو؟
۲. پاک الله (جل جلاله) پرته له موږ څخه نور څه شیان پیدا کړي دي؟
۳. موږ د الله (جل جلاله) د صفاتو، قدرتونو او ښې پېژندنې له پاره ښایي څه وکړو؟

پاک الله (جل جلاله) ته!

زه مدد غواړم له تانه اې یوه خدایه احده
که مدد دې راسره وي چار به نه شي زما بده
زه عاجز مریی د ستایم تا به ستایم ستا په فضل
ستا ثنا صفت به وایم څو زه توان لرم بېحده
ستا ثنا ده تر حد تېره د بیابان تر شګو ډېره
هسې څوک دي چې خبر شي د دې شګو له عدده
دا شامت زموږ خپل دی چې مو کار هسې مشکل دی
ګڼه تـه څه هسې نه یې چې خپل ورتړې له رده
د خوشحال ویل اومه دي لایق ستا د صفت نه دي
ستا په فضل به پخېږي دا اومه ویل احده

خوشحال خان خټک

نوي لغتونه:

| | | |
|---|---|---|
| مدد- مرسته | چار- کار | احد- یو (واحد) |
| شامت- بدمرغي | اومه- خام | مریی- غلام |
| ستایم- ستاینه کوم | | |

**ښوونکي ته لارښوونې:**

۱. ښوونکی دې شعر ولولي.
۲. د الله (جل جلاله) د قدرتونو او صفاتو په هکله دې خبرې وکړي.
۳. زده کوونکي دې په ګروپونو باندې وويشي او هر ګروپ دې له يو بل سره دمشورې په توګه د خدای (جل جلاله) په صفاتو او قدرتونو باندې خبرې وکړي، او بیا دې له هر ګروپ څخه يو تن خپلې خبرې نورو ته ووايي.

## دزده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې د شعر بیتونه ولولي او هغه دې معنا کړي.
۲. په دوه کسيزه توګه دې دا شعر داملا په توګه يو بل ته ووايي او ودې ليکي.
۳. پـه وار سره دې د ټولګي مخې تـه را شـي او پـه مېـز باندې ايښودل شـوي کارتونـه چې د الله (جل جلالـه) نومونه او صفتونه په کې ليکل شوي واخلي. هر يو زده کوونکی دې دخپل کارت کلمه په تخته وليکي او هغې ته دې يوه جمله جوړه کړي.
دمثـال په تـوګـه: په کـارت کـې (رحم) هـېـڅــوک د خدای (جل جلاله) لــه رحــم څــخــه بې نصيبه نه دي.

**ارزونه:**

۱. زده کوونکي شعر لوستلی او په مطلب يې پوهېدلی شي؟
۲. د شعر هر يو بيت لوستلی اوتوضيح کولی شي؟
۳. دا لاندې کلمې په تورو اړولی شي؟
(احد، ستايم، فضل، شامت، اومه)

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې له خپلو کورنيو سره د الله (جل جلالـه) د قـدرتونو او صـفاتو پـه هکله مشورې وکړي. د هغو له ويناوو څخه دې پنځو صـفتونو تـه جملې جوړې او په کتابچو کې دې وليکي.

دوهم لوست

# پوهنه



موخې:

۱. زده کوونکي د پوهنې په معنا او مفهوم باندې وپوهېږي.
۲. د پوهنې په ارزښت باندې وپوهېږي.
۳. متن سم ولولي او وې لیکي.

هڅوونکې پوښتنې:

۱. تاسو پوهېږئ چې پوهنه څه معنا لري؟
۲. مورې ولې درس وایو او دا موضوع له پوهنې سره څه اړیکې لري؟
۳. مورې څنګه کولی شو چې دپوهې خاوندان شو؟

علم د پوهې، پېژندنې او خبرتیا په معنا دی. پوهنه دیوې رڼا په څېر د انسان زړه، دماغ او د هغه د بریالیتوبونو لارې روښانه کوي. انسان له بې لارۍ او مایوسۍ څخه ژغوري او خپلې موخې ته یې د رسېدو لارې چارې برابروي. له بلې خوا ناپوهي دا سې تیاره ده، چې انسان له ډار، خطر او خوارۍ سره مخامخ کوي.
څښتن تعالی (جل جلاله) په خپله د پوه او ناپوه ترمنځ د توپیر په هکله داسې فرمایي: ((آیا هغه کسان چې پوهېږي له هغو کسانو سره چې نه پوهېږي برابر دي؟))
هېڅکله پوهه او ناپوهي – رڼا او تیاره سره برابر نه دي.
انسان د علم او پوهې په وسیله لومړی خپل ځان او بیا خپل خالق (جل جلاله) پېژني. په کار دي چې له علم سره یې عمل هم ملګری وي، ځکه چې عمل د علم مېوه ګڼل کېږي او وایي چې: ((بې عمله عالم د هغې شنډې ونې په څېر دی چې ارزښت نه لري.)) همدا ډول له علم او پوهې څخه باید د انسانانو دهوساینې، سوکالۍ او دهغوی د ستونزو دلرې کولو له پاره کار واخلو. د خپلو خلکو او دبشر د نېکمرغیو له پاره هلې ځلې وکړو.

نوي لغتونه:

| | | | |
|---|---|---|---|
| بریالیتوبونه - کامیابۍ | شنډه- بې مېوې | ستونزې- مشکلات | |
| هلې ځلې- هڅې او کوښښ | هوساینې- آرامي | سوکالۍ- آسوده ګي | |

**ښوونکي ته لارښووني:**

۱. ښوونکی دې متن ولولي او دغه په هکله دې معلومات وړاندې کړي.
۲. د پوهنې په ارزښت اوهغې ته د اړتیاوو په هکله دې خبرې وکړي.
۳. په متن کې دې متضادو کلمو ته اشاره وکړي. لکه: پوه، ناپوه - رڼا ، تیاره، خبرتیا ، بې خبري.

**د زده کوونکو فعالیتونه:**

۱. زده کوونکي دې متن له خپل ځان سره ولولي او دغه مطلب دې په ساده کلمو کې څرګند کړي.
۲. زده کوونکي دې دا لاندې لغتونه تر معنا کولو وروسته په جملو کې وکاروي.
(پوهه ، ستونزې، ارزښت، سوکالي)
۳. زده کوونکي دې دا لاندې نیمګړې جملې د متن په لوستلو سره بشپړې کړي او بیا دې په کتابچو کې ولیکي.

الف. دعلم او پوهې په مرسته لومړی خپل ځان او بیا................ .
ب. بې عمله عالم د .................... .
ج. آیا هغه کسان چې علم لري برابر دي له هغو......................... .
د. دعلم او پوهې څخه د انسانانود......................... .
هـ. پوهه دیوې رڼا په څېر د انسان زړه.............. .

**ارزونه:**

۱. زده کوونکي د پوهنې په معنا او مفهوم وپوهېدل؟
۲. په دې هکله یوه لنډه مقاله لیکلی شي؟
۳. متن لوستلی او لیکلی شي؟

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې دغه کلمې په مناسبو جملو کې وکاروي بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.
(رڼا ، هوسایي، نېکمرغي، خواري)

دریم لوست

# ځان وپېژنه!

موخې:

۱. د ځان وپېژنه په معنا او مطلب باندې د زده کوونکو پوهېدل.
۲. زده کوونکي دې وپوهېږي چې دوی هم خپلو خلکو او ټولنې ته مسوولیتونه لري.
۳. دمتن لوستل او لیکل.

هڅوونکې پوښتنې:

۱. تا سو په دې مطلب پوهېږئ چې ځان وپېژنه څه معنا لري؟
۲. د یوه پوه او غیرتمن ځوان په صفت د ژوند په عملي ډګر کې باید څه وکړو؟
۳. ولې خلک او ټولنه مور ته سترګې په لاره دي؟

سترګې پرانیزه، د بدبینۍ حس له مغزو څخه وباسه، په ځیرځیر وګوره، طبیعت ټول تاته په خندا د ژوندانه د هوسایني اسباب را غونډوي. غرونه ستا دلوړهمت د هرکلي له پاره هر لورته ولاړ دي. لمر هره ورځ له ځان سره تاته د ژوندانه بې شمېره هیلې را وړي. ځمکه خپل آرمانونه د ګلونو په پاڼو کې تاته وړاندې کوي.د وطن د وړو او زړو د امېد سترګې ستا خواته کږې دي، ځکه چې ته د دوی او دوی ستا دي. د کوچنیوالي لوبې کوچنیانو ته پرېږده. د زلمیتوب بې ځایه عیشونه او هوسونه هغه چاته وړاندې کړه، چې ته یې پېښنې کوې.

ته دخپلو بې وزلو کاریګرو سره لیچې ونغاړه. له بزګرانو سره لاسونه تنهاکې کړه. له زده کوونکو سره ماغزه په کار واچوه. د وطن د پرمختګ له پاره زیار وباسه. پرېږده! چې نور په هوا الوزي ته بې وزرو الوتی نه شې.

ځان وپېژنه! په تشو خبرو هېڅ نه ترسره کېږي. عملي میدان ته را ووځه! دا خاوره ستا همت ته ګوري. کار غواړي. د بې غمۍ او استراحت سره وداع وکړه. خوب دګور مړوته پرېږده! ته خو ژوندی یې. دهېواد راتلونکی سعادت په تا پورې اړه لري. د زلمیتوب طلایي ورځې په همدې خدمت کې تېرې کړه. سر ترپایه دپېښنوکولو په جامو کې ځان مه نغاړه! د دې وخت دی چې ځانته ووایې: آه لا ترڅو!؟ ځان و پېژنه! داسې کار وکړه چې نور ستا پېښنې وکړي، لکه پخوا چې یې کاوه.

(الفت)

**نوي لغتونه:**

| | | | |
|---|---|---|---|
| وړانګې- پلوشې | تقليد- دنورو پيښې کول | نغاړل- پېچل |
| هيله- امېد | لېچې ونغاړه- لستوڼي را پورته کړه | مه نغاړه- مه تاووه |

**ښوونکي ته لارښووني:**

۱. ښوونکی دې متن ولولي. دهغه په معنا او مطلب دې وغږېږي.
۲. ځوانانو ته دې خپل مسووليتونه ور وپېژني.
۳. دا کلمې دې په تخته وليکي او له زده کوونکو څخه دې وغواړي چې يوه يوه جمله ور څخه جوړه، بيا دې په خپلو کتابچو کې وليکي.
(ارمانونه، راتلونکې، زلميتوب، لوړهمت)
۴. ښوونکی دې متن په زده کوونکو باندې د املا په توګه وليکي.

**دزده کوونکو فعاليتونه:**

۱. زده کوونکي دې په ډلو ووېشل شي. هره ډله دې په يوې ټاکلې برخې باندې خبرې وکړي. خپلې نظر يې دې په يوه پاڼه کې وليکي اوله هرې ډلې څخه دې يو تن د نورو په مخ کې ولولي.

الف. انسان ولې د کار کولو له پاره بايد لوړ همت ولري؟

ب. د خپل ځان او هېواد د پرمختګ له پاره ځنګه زيار وباسو؟

**ارزونه:**

۱. زده کوونکي د لوست په معنا او مفهوم باندې و پوهېدل؟

۲. آيا زده کوونکو خپل مسووليتونه وپېژندل. دوی وپوهېدل چې د يوه پوه ځوان په توګه دخپلو خلکو او هېواد له پاره څه وکړي؟

۳. د متن لوستل او ليکل کولی شي؟

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې له متن څخه پنځه کلمې په خپله خوښه غوره کړي او هغه دې په جملو کې وکاروي.

## څلورم لوست

# غږونه (آوازونه)

موخې:

۱. د اساسي يا بنسټيزو توکو په څېر د غږونو پېژندل.
۲. زده کوونکي دې په دې و پوهېږي، چې يوه ژبه څنګه له غږونه څخه جوړه شوې ده؟
۳. په لوستلو او ويلو کې د غږونو سم ادا کول.

هڅوونکې پوښتنې:

۱. تاسو څه فکر کوئ، چې غږونه هم په ژبه کې ارزښت لري؟
۲. زموږ د ژبې ټولې کلمې او خبرې له غږونو څخه جوړې شوېدي؟
۳. آيا ټول غږونه په ويلو کې يو شان دي؟

د شلمې پېړۍ په پيل کې نوو علمي څېړنو دا ثابته کړه چې، غږونه د يوې ژبې اساس او بنسټ جوړوي، نو ويلی شو چې غږونه د ژبې جوړوونکي توکي دي. که څه هم دغه کوچني توکي په يوازې توګه معنا نه لري، خو د هغو توپير په کلمو کې، د کلمو معنا بدلوي، لکه: د (ت) آواز د (تور) په کلمه کې. که چېرې د دغه آواز په ځای د (پ) آواز راوړو، نو د تور له کلمې څخه د (پور) کلمه جوړېږي. چې دا دوه بېلې بېلې کلمې دي. غږونه په هره ژبه کې په يوازې او جلا جلا توګه، نه کارول کېږي، بلکې د هغو له يو ځای کېدو څخه تر ټولو کوچني معنا داره واحدونه جوړېږي چې کلمه ورته وايي.

په هره ژبه کې الفبې د هغې ژبې د ټولو تورو شمېر ته ويل کېږي چې د هغې ژبې د آوازونو انځورونه کوي. يا د يوې ژبې د غږونو رسم او شکل ښيي چې په ليکنه کې ترې کار اخيستل کېږي.

په پښتو ژبه کې د څلوېښتو په شاوخوا کې غږونه کارول کېږي، چې په دغو ګروپونو باندې وېشل شويدي:

| | |
|---|---|
| الف. خپلواک غږونه. | ب. ببواک غږونه. |
| ج. نيم واک غږونه. | د. غبرګ غږونه. |

نوي لغتونه:

| | | |
|---|---|---|
| توکي- برخې، اجزا | توپير- فرق | اساسي- بنستيز |
| څېړنه- تحقيق | غبرګ- جوړه | انځورونه- رسمونه |

**ښوونکي ته لارښوونې:**

۱. ښوونکی دې متن ولولي او په دې برخه کې چې، غږونه د يوې ژبې بنستيز توکي دي څرګندونه وکړي.
۲. غږونه او د الفبې توري دې په جلا جلا توګه وښيي. د هغو توپيرونه دې په مثالونو کې څرګند، بيا دې په تخته وليکي او زده کوونکي دې هم هغه وليکي.
۳. د غږونو ډولونه دې په تخته وليکي او په زده کوونکو دې تکرار کړي.
۴. متن دې په زده کوونکو باندې په ياد زده کړي.

## د زده کوونکو فعاليتونه:

۱. زده کوونکي دې متن ولولي او د هغه په هکله دې وغږېږي!
۲. دا برخه دې د متن په لوستلو سره بشپړه او په کتابچو کې دې وليکي!

الف. د شلمې پېړۍ علمي څېړنو دا ثابته کړه چې ................
ب. غږونه په جلا او يوازې توګه معنا نه لري خو ...............
ج. په هره ژبه کې د هغې الفبې ..........
د. په پښتو ژبه کې د (۴۰) غږونه...............
هـ. د غږونو له جوړښت او يوځای کېدو څخه ...........
و. ټول غږونه په څلور برخو وېشل شوي ...............
ز. کلمه هغه تر ټولو کوچنی ............

**ارزونه:**

۱. آيا زده کوونکي د غږونو په موخه وپوهېدل؟
۲. په دې هم پوه شول چې د يوې ژبې بنستيز توکي څه شی دي؟
۳. غږونه په لوستلو کې سم ادا کولی شي؟

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې متن په کتابچو کې وليکي. او د هغه په مطلب دې خپلو ټولګيوالو ته خبرې وکړي.

### پنځم لوست

# آریایان

موخې:

۱. د آریایانو پېژندل.
۲. د آریا یانو د ټاټوبي، ژبې او ژوند په هکله پوهېدل.
۳. د آریایانو د کوچېدلو په هکله پوهېدل.

هڅوونکې پوښتنې:

۱. آیا تاسو د آریایانو کلمه اویا د هغو په هکله کومه کېسه اورېدلې ده؟
۲. آیا تاسو فکر کولی شئ چې لرغوني آریایان زموږ لوی نیکونه دي؟
۳. آریایان لومړی څل چېرې اوسېدل او څه ډول ژوند یې درلود؟

له میلاد څخه په زرګونو کلونه مخکې داوسني افغانستان په شمال کې آریایي قومونه اوسېدل. دوی خپل لرغوني ټاټوبي ته آریاناوېجه ویله، چې د اصیلانو او شریفو خلکو د اوسېدو ځای معنا لري. آریایان په لومړي سر کې په یوه ژبه چې آریک نومېده غږېدل او دا د پښتو ژبې اصلي مور ګڼل شوې ده.
آریایانو په آریاناوېجه کې د کوچیتوب او مالدارۍ ژوند درلود. خو زرګونه کلونه وروسته یې ښاري ژوند پیل او د لومړي ځل له پاره یې د بُخدي ښار جوړ کړ، چې پېشدادي کورنۍ (یما) پاچا د آریایي دولت اداره په غاړه درلوده. دا زمانه له میلاد څخه (۱۵۰۰) کاله د مخه اټکل شوې ده.
یما پاچا ډېر هوښیار او نوښتګر و. ده ډېر خدمتونه وکړل. ځمکې یې آبادې او ویالې یې جوړې کړې. دخپلې ټولنې د ښه سمون له پاره یې اداره جوړه کړه. دوی لوېې او وړې جرګې درلودې، چې هر ډول پرېکړې به یې کولې. حتی مشر به یې هم له دې لارې ټاکه. له زرګونو کلونو څخه وروسته آریایان د زیاتوالي له امله د افغانستان نورو سیمو ته وکوچېدل، چې زموږ د هېواد په مرکزي، ختیځو او لویدیځو برخو کې خپاره او مېشته شول.
خو دغو ستونزو بیا هم دوی له افغانستان څخه نورو سیموته وکوچول، چې

لوېديځ خوا ایران او ختیځ خوا تـه د هنـد تـر ځنګلونو پورې ورسـېدل. لـه ځـان سره وړی تمدن يې خپور او ښه وده يې ورکړه.

نوي لغتونه:

ټاټوبی- د اوسېدو ځای
ويجه- ټاټوبی
ټاکل- تعينول
نوښتګر- مبتکر
بُخدي- اوسنی بلخ چې اُم البلاد هم نومېده.

**ښوونکي ته لارښووني:**

۱. ښوونکی دې متن ولولي او د آريايانو په هکله دې زده کوونکوته معلومات وړاندې کړي.
۲. متن دې په زده کوونکو باندې د املا په توګه وليکي.
۳. د متن د لاندې بنيو برخو په هکله دې څرګندونې وکړي.
الف. آريانا ويجه. ب. آريک ژبه. ج. د بُخدي ښار. د. د آريايانو کوچېدل.

## د زده کوونکو فعاليتونه:

۱. زده کوونکي دې متن په دوه کسيزه توګه ولولي او بيا دې يو بل ته د هغه په هکله څرګندونې وکړي.
۲. دا لاندې لغتونه دې په مناسبو جملو کې راوړي او په کتابچو کې دې وليکي.
الف. نوښتګر ب. خدمتونه ج. آريک د. بُخدي
۳. د جملو تش ځايونه دې د متن په لوستلو سره په مناسبو کلمو ډک او بيا دې وليکي.
الف. آريايانو په يوه ژبه خبرې کولې چې ________ نومېده، او د ________ مور بلل کېږي.
ب. آريايانو په يوه سيمه کې ژوند کاوه چې ____________________ يادېدله.
ج. د آريايانو لومړنی پاچا _____ نومېده (۱۵۰۰) کاله دمخه په _____ کې په تخت کښېناست.
د. آريايان د زياتوالي له امله له افغانستان څخه د ________ او ________ خواته وکوچېدل.
(پښتو ژبې ـ آرياناويجه ـ يما ـ ايران ـ بُخدي ـ آريک ـ هند)

### ارزونه:

۱. آيا زده کوونکي په دې وپوهېدل چې آريايان څوک دي؟
۲. دآريايانو د اصلي ټاټوبي، ژبې او کوچېدو په هکله وپوهېدل؟
۳. متن لوستلی او ليکلی شي؟

### کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د دغو کلمو لنډه څرګندونه وکړي او بيا دې په خپلو کتابچو کې وليکي.
(اُم البلاد ـ آريک ـ آرياناويجه ـ يماپاچا)

شپږم لوست

# کتاب څنګه منځ ته راغی؟

**موخې:**

۱. زده کوونکي په دې وپوهېږي چې کتاب څنګه منځ ته راغی؟
۲. د کتاب په ارزښت باندې پوهېدل.
۳. د متن لوستل او ليکل.

**هڅوونکې پوښتنې:**

۱. تاسو څه فکر کوئ چې پخوا زمانو کې به هم کتاب موجود و؟
۲. په پخوا زمانو کې به له کاغذ څخه پرته په نورو کومو شيانو باندې ليکل شوي وي؟
۳. کاغذ به د لومړي ځل له پاره چېرته جوړ شوی وي؟

په تېرو زمانو کې کتاب نه و. زموږ پلرونو به کېسې په ياد زده کولې او بيا به يې خپلو ماشومانو ته ويلې، چې په همدې ډول دا کېسې پېړۍ، پېړۍ نورو نسلونو ته رسېدلې. خو ځرنګه چې دا کېسې ډېرې زياتې وې او ټولې به يې په ياد نه پاتې کېدې نو دوی د داسې شي په فکر کې شول چې د کېسو په ساتلو کې ورسره مرسته وکړي. همدا وه چې ځينو خلکو به په لرګيو کې د يوې ښې په توګه نښانې کولې او ځينو به په تارونو باندې رنګه رنګه غوټې جوړولې، چې د يوې ځانګړې کېسې څرګندونه به يې کوله.

وروسته په دې هم و پوهېدل، چې د تېره لرګي په څوکه په نرمه خټه باندې يوه ښه وباسي او په اور باندې يې پخه کړي ترڅو ډېر عمر پاتې شي چې همدا کار په حقيقت کې د کتاب د منځ ته راتلو پيل و.

تردې وروسته انسانان د ونو د پوټکي او پاڼو په تېره د پاپېروس د بوټي په پاڼو د ليکلو په فکر کې شول، چې څه نا څه تر ډېرې مودې پورې يې پاينښت درلود.

مصريانو کم له کمه (۵۰۰۰) کاله پخوا د پاپېروس د بوټي له پاڼو څخه يو ډول کاغذ جوړ کړ. کله چې و پوهېدل هغه له منځه ځي، نو د هغه په ځای يې د ژوو پوستکي د ليکلو له پاره غوره کړل.

او د کتاب په څېر يې ترې کار واخيست، خو دغو کتابونو يوازې په مالدارو خلکو پورې اړه درلوده. د زرګونو کلونو وروسته بيا په چين کې د اوسني کاغذ ډېر

ابتدايي او لومړنی شکل منځ ته راغی. وروسته په جرمني کې د چاپ ماشين جوړ شو، چې د کتاب د ليکلو، ترتيبولو او چاپولو له پاره سمه لاره پرانيستل شوه.
لنډه دا چې د اوسني کتاب د ليکلو پړاو د ډېرو زيارونو له امله منځ ته راغی او اوس د ټول جهان انسانان تري ګټه اخلي او خپلې غوښتنې، نظريات او افکار د نړۍ له خلکو سره په دې وسيله شريکوي.

نوي لغتونه:
(پېړۍ ـ قرن) (غوره- بهتر) (علامې ـ نښې) (کرښې ـ خطونه) (غوښتنې ـ هيلې)
(پاپېروس د اوقيانوس د درياب په غاړه د پلنو پاڼو درلودونکی بوټی و.)

ښوونکي ته لارښوونې:

١. ښوونکی دې متن ولولي او په دې هکله دې زده کوونکو ته معلومات وړاندې کړي.
٢. د کتاب د منځ ته راتلو بهير دې په ساده وينا ووايي.
٣. متن دې د املا په توګه په زده کوونکو باندې وليکي.
۴. د پاپېروس، د چاپ ماشين او د ژوو په پوستکو باندې دې خبرې وکړي.

د زده کوونکو فعاليتونه:

١. زده کوونکي دې متن ولولي او د هغه په هکله دې معلومات وړاندې کړي.
٢. د جملو نيمګړې برخې دې په مناسبو کلمو سره بشپړې او په خپلو کتابچو کې دې وليکي.

الف. مصريانو تقريباً پنځه زره کاله پخوا ــــــــــــــــ جوړ کړ.
ب. داوسني کاغذ ډېر ابتدايي شکل په ــــــــــــــــ کې منځ ته راغی.
ج. په جرمني کې د ــــــــــ اختراع شو چې د ــــــــ کار يې ډېر آسانه کړ.
هـ. انسانان کله چې و پوهېدل د پاپېروس پاڼې له منځه ځي نو د ــــــــــــ يې غوره کړ.

ارزونه:

١. آيا زده کوونکي د کتاب د منځ ته راتلو په بهير وپوهېدل؟
٢. زده کوونکي د کتاب په ارزښت او اړتيا باندې هم پوه شول؟
٣. زده کوونکي متن لوستلی او ليکلی شي؟

کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د کتاب د منځ ته راتلو بهير په ساده نثر په خپلو کتابچو کې وليکي او سبا ته دې خپلو همځولو ته په ټولګي کې ولولي!

## اووم لوست

# حضرت علي (کرم الله وجه)

موخې:

۱. د حضرت علي (کرم الله وجه) پېژندنه.
۲. د حضرت علي (کرم الله وجه) د خلافت په هکله پوهېدل.
۳. د متن لوستل او ليکل.

هڅوونکې پوښتنې:

۱. په تېرو ټولګيو کې مو د صحابه کرامو نومونه اورېدلي دي؟
۲. آيا تاسو د حضرت علي کرم الله وجه په هکله څه معلومات لرئ؟

حضرت علي کرم الله وجه په زړورتيا شهرت درلود. پلار يې ابو طالب نومېده. له هجرت څخه يوويشت کاله مخکې په مکې معظمې کې زېږېدلی او د حضرت محمد (صلی الله عليه وسلم) څلورم يار و.

حضرت علي کرم الله وجه له وړکتوب څخه د حضرت محمد (صلی الله عليه وسلم) سره مينه درلوده او دغه د اخلاقو پيروي يې کوله. کله چې حضرت محمد (صلی الله عليه وسلم) د خدای (جل جلاله) له خوا پيغمبر و ټاکل شو. حضرت علي کرم الله وجه لومړی کوچنی ماشوم و، چې ايمان يې ور باندې راوړ او د اسلام په مبارک دين مشرف شو.

حضرت علي کرم الله وجه ډېر لوی عالم، غښتلی، زړور او د نېکو اخلاقو خاوند و. د حضرت محمد (صلی الله عليه وسلم) له کړو وړو سره يې زياته مينه درلوده. له خلکو سره به يې تل ښه چلند کاوه. په اخلاص، توره، مېړانه، زړورتيا او جهاد کې يې ساری نه درلود.

کوم وخت چې حضرت عثمان (رضی الله عنه) په شهادت ورسېد. حضرت علي کرم الله وجه د مسلمانانو خليفه شو. د خلافت په موده کې يې ډېر فتوحات وکړل. د خلافت څخه مخکې يې هم د حضرت محمد (صلی الله عليه وسلم) سره په ډېرو غزاګانو کې برخه اخيستې وه.

څلور کاله او څو میاشتې یې خلافت وکړ. په پای کې د عبدالرحمن بن مُلجم له خوا د هجرت په څلوېښتم کال دروژې په اوولسمه ورځ په شهادت ورسېد.

**ښوونکي ته لارښوونې:**

۱. ښوونکی دې متن ولولي او دهغه په مفهوم باندې دې رڼا واچوي.
۲. متن دې د املا په توګه په زده کوونکو باندې ولیکي.
۳. د حضرت علي کرم الله وجه په شخصیت باندې دې وغږېږي.

**د زده کوونکو فعالیتونه:**

۱. زده کوونکي دې متن ولولي او دهغه په مطلب دې خبرې وکړي!
۲. دحضرت علي کرم الله وجه په هکله او رېدلې کېسې دې نوروته ووايي.
۳. دا لاندې پوښتنې دې ولولي او دهغو ځوابونه دې په کتابچو کې ولیکي.

الف. حضرت علي کرم الله وجه د چا زوی او حضرت محمد صلی الله علیه وسلم سره یې څه نسبت درلود؟
ب. حضرت علي کرم الله وجه په کوم کال کې زېږېدلی دی؟
ج. د حضرت علي کرم الله وجه د شخصیت په هکله معلومات ورکړئ!
د. حضرت علي کرم الله وجه د چا له خوا او په کوم کال کې په شهادت ورسېد؟

**ارزونه:**

۱. زده کوونکو د حضرت علي کرم الله وجه شخصیت وپېژاند؟
۲. آیا زده کوونکي و پوهېدل چې حضرت علي کرم الله وجه لومړی ماشوم و چې په اسلام مشرف شو؟
۳. زده کوونکي متن لوستلی او لیکلی شي؟

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې دحضرت علي کرم الله وجه په هکله معلومات په خپلو کتابچو کې ولیکي او په یاد دې زده کړي.

اتم لوست

# کلمه اود هغې ډولونه

موخې:

۱. د کلمې په معنا او مفهوم باندې پوهېدل.
۲. د کلمو د ډولونو پېژندل.
۳. په لیکلو او لوستلو کې د کلمو سم کارول.

هڅوونکې پوښتنې:

۱. آیا تاسو د کلمې په هکله څه اورېدلي او پوهېږئ چې کلمه څه معنا لري؟
۲. موږ په خبرو اترو کې له کلمو څخه کار اخلو؟
۳. ستاسو په فکر به کلمې ټولې یوشان وي او که توپیر لري؟

## کلمه:

هغه کوچني ژبني توکي دي چې ځینې یې په خپله پوره معنا او خپلواک مفاهیم لري. ځینې یې په یوازې توګه معنا نه ورکوي، خو دجملو د معناوو په بشپړولو کې لویه ونډه اخلي. کلمې په لومړي سر کې د معنا له مخې په دوو لویو برخو وېشل شوي: خپلواکې او ناخپلواکې کلمې.

## خپلواکې کلمې:

هغه کلمې چې په خپله معنا ولري او په هغوی کې ټول نومونه، قیدونه او ټولې فعلي ډلې راځي لکه: احمد، زه، ښه، لایق، راغی او نور....

## ناخپلواکې کلمې:

هغه کلمې دي چې په خپلواکه توګه معنا نه لري، خو له خپلواکو کلمو سره چې یو ځای شي د جملې معنا بشپړوي او بدلوي.

په ناخپلواکو کلمو کې سرینې، پسینې، د ربط، دعطف، تاړي(وندونه) او نور راځي.

لکه: و، به، له، د، نه، سره، څخه، ځینې، او نور....

نوي لغتونه:

| | |
|---|---|
| ونډه- برخه | توپیر – فرق |
| ډله- ګروپ | لړۍ – سلسله |

**ښوونکي ته لارښووني:**

۱. ښوونکی دې متن ولولي او د هغه په برخه کې دې په بشپړه توګه څرګندوني وکړي.
۲. د لاندې موضوعګانو په هکله دې پوره څرګندوني وکړي.
الف. کلمه څه ته وايي؟
ب. کلمه په څو برخو وېشل شوې ده؟
ج. خپلواکي کلمې کومې دي او کومې برخې په کې شاملېږي؟
د. ناخپلواکې کلمې څه ته وايي او کومې کلمې په کې برخه لري؟

## د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې متن ولولي او د هغه په مرسته دې لاندې برخې بشپړې کړي!

الف. کلمې هغه کوچني ژبني توکي دي چې ....................................
ب. کلمه په دوو لویو برخو وېشل شوې چې ................................
ج. په خپلواکو کلمو کې دا برخې شاملې دي ...........................
د. په ناخپلواکو کلمو کې دا برخې شتون لري .......................
هـ. خپلواکې او ناخپلواکې کلمې له یو بل څخه دا توپیرونه لري چې .....................

**ارزونه:**

۱. آیا زده کوونکي د کلمې په معنا او مفهوم باندې و پوهېدل؟
۲. آیا زده کوونکي د خپلواکو او ناخپلواکو کلمو ترمنځ توپیر کولی شي؟
۳. زده کوونکي متن سم لوستلی او لیکلی شي؟

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د متن په مطلب باندې خبرې وکړي او هغه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

نهم لوست

# د خپلواکو کلمو ډولونه

موخې:

۱. د خپلواکو کلمو په معنا او مفهوم باندې پوهېدل.
۲. په متن کې د خپلواکو کلمو پېژندنه.
۳. په لیکلو او لوستلو کې د خپلواکو کلمو سمه کارونه.

هڅوونکې پوښتنې:

۱. تا سو د خپلواکو کلمو په هکله څه اورېدلي دي؟
۲. زموږ په خبرو اترو کې به هم له خپلواکو کلمو څخه کار اخيستل شوی وي؟
۳. ستاسو په فکر خپلواکې کلمې به نور ډولونه هم ولري؟

خپلواکې کلمې په دوو لويو برخو وېشل شوي دي: اسمي او فعلي برخې.
اسمي (نوميزې) برخې: چې نومونه، صفتونه، ضميرونه، او شمېر نومونه (عددونه) په کې شامل دي.

نوم (اسم): هغه خپلواکه معنا لرونکې کلمه ده چې د ټولو شيانو (موجوداتو) اواشخاصو له پاره راشي.
لکه: احمد، مېز، عقل، دود ،اکسيجن، شېدې، ونه، او نور...

دنوم ډولونه:

نوم دا ډولونه لري: نارينه نوم، ښځينه نوم، مفردنوم، مرکب نوم،ډله ييز (د جمعيت) نوم د وخت نوم، د آلې نوم، دمعنا نوم، د ذات نوم، عام نوم، خاص نوم، او نور ......
له دې جملې څخه به ځينې نومونه له مثالونو سره وګورو!

د ذات نوم: هغه کلمې دي، چې ديوه حس کېدونکي شي له پاره راشي
لکه: قلم، کتاب، احمد، مېز.

دمعنا نوم: هغې کلمې ته وايي، چې مادي وجود ونه لري لکه: پوهه، عقل، علم، تنګ.

خاص نوم: هغه کلمه ده، چې ديوه ځانګړي شي يا شخص له پاره راشي لکه: احمد شاه بابا، کابل، کندهار.

عام نوم:چې د همجنسو شيانو يا اشخاصو له پاره راوړل شي لکه: سړی، نجلۍ، کتاب، ښار.

**د جنس نوم:** چې په يوه نه شمېرېدونکي شي پورې اړه ولري او لږ او ډېر و ته يو شان و کارول شي لکه: اوبه، تيل، غوړي، وربښم.

**د جمعي نوم:** چې په يوه ډله او جمعيت پورې اړه ولري لکه: رمه، ګله، ولس، خلک.

**د صوت نوم:** هغه کلمه ده چې د طبيعي او غير طبيعي غږونو له پاره راشي لکه: ترهار، شر وشور، ترنګ وترونګ.

نوي لغتونه:

| | | | |
|---|---|---|---|
| شمېرنوم- | (عدد) | ځانګړی – | مشخص |
| نه شمېرېدونکي- | بې حسابه | | |

> **ښوونکي ته لارښوونې:**
>
> ۱. ښوونکی دې متن ولولي او په هره برخه دې خبرې وکړي.
> ۲. د خپلواکو کلمو برخې دې جوتې او څرګندې کړي.
> ۳. په اسمي برخو کې دې شاملې کلمې څرګندې او روښانه کړي.
> ۴. نوم او د هغه ډولونه دې په جلاجلا توګه وښيي. د مثالونو په ورکولو سره دې يو له بله توپير کړي او زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې وليکي.

**د زده کوونکو فعاليتونه:**

۱. زده کوونکي دې په دوه کسيزه توګه متن ولولي او يو بل ته دې تشريح کړي!
۲. زده کوونکي دې په خپل ټولګي کې د شيانو نومونه په يوه لست کې وليکي او په هغو کې دې د نوم ډولونه وښيي.

لکه: مېز (عام نوم)    کتاب (عام نوم)    هلک (ذات نوم)
زموږ د تاريخ استاد سرور خان (خاص نوم)

۳. زده کوونکي دې دا لاندې بيتونه ولولي. نومونه دې په کې پيدا او په خپلو کتابچو کې دې وليکي.

که يې فکر ستا له فکره مخالف وي    شپه او ورځ که در سره وي آشنا نه دی
لمر که راشي په تندي باندې له پاسه    ته چې وينې له خوبه نه يې سبا نه دی

**ارزونه:**

۱. زده کوونکو خپلواکې کلمې وپېژندلې؟
۲. زده کوونکي د خپلواکو کلمو په ډولونو باندې هم و پوهېدل؟
۳. زده کوونکو نومونه او د هغو ډولونه وپېژندل؟
۴. زده کوونکي له خپلواکو کلمو څخه په ليکنه او لوستنه کې کار اخيستلی شي؟

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې په پورتني شعر کې نومونه پيدا کړي او د هغه ډولونه دې په کې وښيي او په کتابچو کې دې وليکي.

## لسم لوست

# امیر کروړ

**موخې:**

۱. د لومړني شاعر او غښتلي پهلوان په توګه د امیر کروړ (جهان پهلوان) پېژندنه.
۲. دپخوانيو نامتو کسانو پېژندل.
۳. د متن لوستل او ليکل.

**هڅوونکې پوښتنې:**

۱. تاسو په پښتو کې د لومړني شاعر په هکله څه فکر کوئ؟
۲. د پښتو د شعر او شاعرۍ پیل به له کوم وخته او د چا په واسطه شوی وي؟
۳. آیا تاسو د امیر کروړ نوم اورېدلی، په دې برخه کې څه معلومات لرئ؟

امیر کروړ دسوري کورنۍ هغه نومیالی او توریالی امیر و، چې د پښتو ژبې ډېرنامتو شاعر تېر شوی دی. امیر کروړ د امیر فولاد سوري زوی په (۱۳۹) هـ ق دغور په منديش کې امير شو. د خپل مټ په زوريې ډېرې سيمې ونيولې. دی داسې غښتلی او پهلوان و، چې له سلوتنو جنګياليو سره به په يوازې توګه جنګېده نو ځکه يې کروړ باله چې معنا يې کلک او غښتلی دی.

امیر کروړ ډېر عادل، مهربان او د ټينګې ارادې څښتن و. له خپلو خلکو سره يې ديوه خدمتګار مشر په توګه چلند کاوه. ښه وينا يې درلوده. په شعرونو کې يې سوچه او سپيڅلي پښتو کلمې کار ولې دي. امير کروړ د عباسيانو په پلوۍ له بني اُميه و سره ډېرې جګړې وکړې، چې زياتې سو بې يې په برخه شوې. دهغو په ویاړ يې دا شعرونه وويل، چې وياړنه يې بولي. او د پښتو شعرونو په لړکې لوړه حماسي ترانه ده.

د تاريخي سندونو له مخې دا شعر لومړنی شعر بلل شوی، ځکه چې مخکې له دې څخه کوم بل شعري سند نه لرو، خو د دغه شعر له پوخوالي او لرغونتوب څخه څرګندېږي چې له دې شعر څخه پخوا به هم نورو شاعرانو شعرونه ويلي وي. ځکه چې لومړني شعر ته ډېر وخت په کار دی، ترڅو د غسې پوخوالي ته ورسېږي امير کروړ په (۱۵۴) هـ ق کال د پوشنګ په جګړو کې مړ شو. د ده د حماسي ترانې سر دادی:

زه يم زمری پردې نړۍ له ما اتل نشته په هند و سند و په تخار و په کابل نشته
بل په زابل نشته له ما اتل نشته

نوي لغتونه:

| | | |
|---|---|---|
| کروړ- سخت | سوبه- فتح | غښتلی- قوي، توانمن |
| ویاړ- افتخار | چلند- کړنه، رویه | ویاړنه- فخرکونه |
| اتل- قهرمان | بری- کامیابي | |

**ښوونکي ته لارښووني:**

۱. ښوونکی دې متن ولولي دهغه په معنا او مطلب دې زده کوونکو ته وغږېږي.
۲. لوست دې په زده کوونکو باندې د املا په توګه ولیکي.
۳. له زده کوونکو څخه دې وغواړي چې د لوست لغتونه په خپلو کتابچو کې ولیکي او یوه یوه مناسبه جمله دې ورته جوړه کړي.
(غښتلی- سوبه- جګړه- ویاړ)

## دزده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې متن ولولي دهغه مطلب دې په لنډه توګه زده کړي.
۲. زده کوونکي دې د دغو جملو تش ځایونه په مناسبو کلمو سره ډک کړي او په کتابچو کې دې ولیکي.

الف. امیر کروړ په ......... هـ ق کال د غور په مندېش کې امیر او په ......................کې وفات شو.
ب. امیر کروړ ډېر غښتلی او پهلوان و، چې له سلو جنګیالیو سره جنګېده ځکه یې نو............. باله.
ج. د امیر کروړ له ویاړني ځخه دمخه کوم بل شعري سند نه لرو، ځکه یې په اوسني وخت کې ...... شعر بللی شو.
د. امیر کروړ د خپلو سوبو په ویاړ شعرونه و ویل چې .............یې بولي.
(۱۵۴ هـ ق - ۱۳۹ هـ ق - ویاړنه- لومړنی- کروړ)

**ارزونه:**

۱. زده کوونکو امیر کروړ و پېژانده؟
۲. زده کوونکي په دې پوه شول چې د امیر کروړ ویاړنه لومړنی پښتو شعر دی؟
۳. زده کوونکي متن لوستلی او لیکلی شي؟

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د درس مطلب په لنډه توګه په خپلو کتابچوکې ولیکي او هغه دې په یاد زده کړي.

## یوو لسم لوست

# متل څه ته وايي

موخې:

۱. زده کوونکي باید وپوهېږي چې متل څه ته وايي؟
۲. دمتلونو ارزښت په خبرو او ویناوو کې.
۳. د متلونو سم کارول په لوستلو او لیکلو کې.

هڅوونکې پوښتنې:

۱. تاسو متلونه اورېدلي او دهغو په مطلب باندې پوهېږئ؟
۲. تاسو متلونه زده کړي او ویلی یې شئ؟
۳. زموږ خلک ولې په خبرو اترو کې کله ، کله متلونه کاروي؟

متلونه د پښتو ژبې په ولسي ادب کې یوه غوره او په زړه پورې برخه ده.
متلونه هغه لنډې وینا وې دي چې ډېر لوی او پراخ مطلب په کې ځای شوی وي.
د متلونو ویونکي معلوم نه دي. په هره زمانه کې ویل شوي او دهغو په وسیله د ټولنې دودونه او د خلکو افکار له یوه نسل څخه بل نسل ته لېږدول کېږي. دمتلونو اغېزه په ژبه کې دومره زیاته ده چې په خبرو اترو کې یې د یوه ټینګ استدلال په توګه راوړي.
دا برخه په پښتو ادب کې ډېره شتمنه اوبډایه ده چې شمېر یې زرګونو ته رسېږي.
ځیني متلونه به دمثال په توګه وګورو:

کبرجن دخدای (جل جلاله) دښمن دی.
خپله ژبه هم کلا ده هم بلا.
کوږ بار تر منزله نه رسېږي.
په یوه ځپېړه سل مخه خوږېږي.
خپل عیب د ولو منځ، د بل عیب د کلو منځ دی.
د تورې پرهار جوړېږي خو د ژبې پرهار نه جوړېږي.
ښه خوی دخلکو ښکار کوي.

نوي لغتونه:

| ولس- | خلک | پرهار- | زخم، ټپ | ولی- | شانه |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| استدلال- | دلیل راوړل | شمېر- | اندازه، حساب | شتمنه- | بډایه |
| اغېزه- | تاثیر | | | | |

## ښوونکي ته لارښووني:

۱. ښوونکی دې متن ولولي او د متلونو په ارزښت دې وغږېږي.
۲. زده کوونکي دې وهڅوي چې په خپلو خبرو او ویناوو کې متلونه وکاروي.
۳. متن دې په زده کوونکو باندې د املا په توګه ولیکي.
۴. دا کلمې دې په تخته ولیکي او زده کوونکي دې په کتابچو کې ورته جملې جوړې کړي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې په تمثیلي بڼه په یوه عمل کې وښیي چې کوږ بار تر منزل نه رسېږي.
۲. دا نیمګړي متلونه دې بشپړ او په کتابچو کې دې ولیکي.
۳. د ټولګیوالو په مخ کې د ې لاندې متلونه بشپړ او د هغه په مطلب دې خبرې وکړي.

الف. په یوه ځپېړه ..........................................
ب. خپل عیب د ولو..................................
ج. کیږدی په خپلو ............................
د. مه کوه په چا چې......................
هـ. ناپوه دومره په بل ...............

## ارزونه:

۱. آیا زده کوونکي متلونه ویلی شي او په مطلب یې وپوهېدل؟
۲. آیا زده کوونکي پوه شول چې هر متل ځانته د کارولو ځای،ارزښت او موخه لري؟
۳. آیا زده کوونکي په خپلو خبرو او لیکنو کې متلونه کار ولی شي؟

## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د متلونو په مطلب ځان پوه کړي او څو متلونه دې په یاد زده کړي.

دو لسم لوست




# د پټې خــزانــې لیکوال

موخې:
۱. زده کوونکي دې پخواني مشهور کتابونه او دهغو لیکوالان وپېژني.
۲. د پخوانیو آثارو په ارزښتونو باندې پوهېدل.
۳. د متن لوستل او لیکل.

هڅوونکې پوښتنې:
۱. تاسو له پخوانیو کتابونو څخه د کوم یوه نوم اورېدلی دی؟
۲. آیا تاسو پټه خزانه نومې کتاب لیدلی یا هغه پېژنئ؟
۳. تاسو د پخوانیو کتابونو یا لیکوالانو په هکله څه ویلی شئ؟

پټه خزانه دپښتو ژبې د ادبیاتو په لړ کې یو ارزښتناک کتاب دی چې محمد ((هوتک)) په ۱۱۴۱ هـ کال په کندهار کې دشاه حسین هوتکي پښتون واکمن په لارښوونه لیکلی دی.

محمد ((هوتک)) په (۱۰۸۴) هـ ق د کندهار په کوکران کې زېږېدلی، د پلار نوم یې داود خان او د نیکه نوم یې قادر خان ((هوتک)) دی. ده د خپل وخت علوم له خپل پلار څخه ولوستل. لوی عالم او پوخ شاعر شو. دده ټول عمر د کتابونو په لوستلو او لیکلو کې تېر شوی دی.

محمد ((هوتک)) په خپله پټه خزانه نومې لرغوني کتاب کې د پنځوسو نارینه او ښځینه شاعرانو د ژوند پېښې او د شعرونو بېلګې ذکر کړې دي. په دې ترتیب یې له سل هجري کال څخه تر یوولس سوه هجري کلونو پورې د پښتو د شعر او ادب تاریخ خوندي ساتلی دی.

محمد ((هوتک)) نور کتابونه هم لیکلي چې خلاصة الفصاحت او خلاصة الطب نومېږي او د شعرونو یو ښکلی دیوان هم لري چې بوللې او غزلې یې په کې راوړې دي.

نوي لغتونه:

خوندي- ساتلي　　ورې- ښايسته او لايق　　پېښې- واقعې

**ښوونکي ته لارښوونې:**

۱. ښوونکی دې متن ولولي او د هغه په مطلب دې خبرې وکړي.
۲. په زده کوونکو دې متن د املا په توګه وليکي.
۳. دېخوانيو ليکوالانو اود کتابونو د ارزښت په برخه کې دې معلومات وړاندې کړي.
۴. معلومات دې ورکړي چې د پټې خزانې غوندې مشهور لرغوني کتابونه او د هغو د ليکوالانو پېژندنه څه ګټه لري؟

## د زده کوونکو فعاليتونه:

۱. زده کوونکي دې په دوه کسيزه توګه متن ولولي او يو بل ته دې مطلب و وايي.
۲. دا لاندې نيمګړې برخې دې بشپړې کړي او په خپلو کتابچو کې وليکي.

الف. د محمد هوتک پټه خزانه د .....................
ب. په پټه خزانه کې د پنځوسو تنو................
ج. د محمد هوتک د پلار او نيکه نوم.........
د. د محمد هوتک نور کتابونه دادي:............

**ارزونه:**

۱. زده کوونکي د پټې خزانې په هکله لنډه خرګندونه کولی شي؟
۲. زده کوونکي په دې وپوهېدل چې د پټې خزانې کتاب د خپل وخت د ليکوالانو او شاعرانو يو ښه تاريخ هم دی؟
۳. زده کوونکي متن لوستلی اوليکلی شي؟

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د پټې خزانې په هکله لنډه خرګندونه وکړي.
زده کوونکي دې دالاندې لغتونه معنا ، بيا دې په جملو کې وکاروي او په کتابچو کې دې وليکي.

(شاعران- پخواني- خوندي، عالم)

دیار لسم لوست

# مطالعه

موخې:

۱. په مطالعې او د هغې په ارزښت باندې پوهېدل.
۲. د زده کوونکو عملاً مطالعې ته هڅول.
۳. د متن سم لوستل او سم لیکل.

هڅوونکې پوښتنې:

۱. تاسو د مطالعې په معنا او دا چې څرنګه مطالعه وکړو پوهېږئ؟
۲. څه فکر کوئ چې مطالعه کول څه ډول کړنه ده؟
۳. موږ ولې باید تل مطالعه وکړو؟



مطالعه داسې کړنه ده، چې د انسان له سترګو او مغزو څخه د ناپوهۍ پردې لرې کوي. مطالعه انسان له مختلفو ارزښتناکو موضوعګانو څخه خبروي. انسان دې ته هڅوي چې باید د علم او پوهې څښتن شي.

د مطالعې له برکته انسان علم او کمال ته رسېږي. دماغي ځواک ته يې وده او پراختیا ورکوي. ترڅو انسان وکولی شي دښو او بدو ترمنځ د توپیر په پوهېدو سره د دنیا او آخرت د ښه والي له پاره زیار وباسي او هڅه وکړي، چې د خپل هېواد ولسونه وپوهوي.

همدا راز مطالعه انسان د خپل ژوند له مسوولیتونو څخه خبروي. هغه ته دا لارښوونه کوي، چې انسان ډېر مسوولیتونه لري. باید په هغو پوه شي او هغه وپېژني. همدا مطالعه ده، چې موږ پرې خپل ځان او خپل رب ( جل جلاله ) پېژنو. له خپل خالق سره اړیکې ټینګوو او د اسلام د سپېڅلي دین او شریعت په هکله پوهېږو. په لارښوونو یې عمل کوو.

نو له همدې امله په قرآن کريم کې هم په دې خبره باندې ټينګار شوی، چې د پوهې او مطالعې په وسيله دخپل ژوند غوره لاره پيدا کړئ او په هغې لارې باندې روان شئ.

نوي لغتونه:

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| هڅه- | زيار او کوښښ ، | پراختيا- | لويوالی، ارتوالی، | سپيڅلی- | پاک |
| نړۍ- | دنيا | ګټور- | ګټه لرونکی | ځواک- | توان |
| غوره- | بهتر ، انتخاب شوی | کړنه- | عمل | | |

ښوونکي ته لارښوونې:

۱. ښوونکی دې متن ولولي او د مطالعې په ارزښت دې خبرې وکړي.
۲. ښوونکی دې د متن ځوکرښې داملا په توګه په زده کوونکو باندې په کتابچو کې وليکي.
۳. ښوونکی دې په متن کې سره ورته او متضادې کلمې وښيي او زده کوونکي دې وليکي.
مترادفې کلمې لکه: زيار او کوښښ ـ علم اوپوهه ـ پوهه او دانش ..................
متضادې لکه: ښه او بد ـ پوهه او ناپوهي ـ تور او سپين............................

د زده کوونکو فعاليتونه:

۱. زده کوونکي دې متن ولولي او د هغه په مطلب دې وغږېږي.
۲. زده کوونکي دې د مطالعې په ارزښت او د هغې په ترتيب باندې خبرې وکړي.
۳. زده کوونکي دې دا لاندې نيمګړې جملې په مناسبو کلمو سره بشپړې او په کتابچو کې وليکي.

الف. مطالعه د انسان له سترګو او مغزو څخه ................. پردې لرې کوي.
ب. مطالعه انسان دې ته هڅوي چې ښايي د..............ښتن شي.
ج. د مطالعې په وسيله انسان د............... ترمنځ توپير کولی شي.
د. مطالعه انسان دخپل ژوند له.............څخه خبروي.
هـ. په قرآن کريم کې هم ټينګار شوی دی چې د مطالعې په وسيله د خپل ژوند.......... پيدا کړئ.
(دښو اوبدو- مسووليتونو- غوره لار - علم او پوهې- جهل اوناپوهي)

ارزونه:

۱. آيا زده کوونکي د مطالعې په مفهوم او ارزښت باندې وپوهېدل؟
۲. آيا زده کوونکي په دې و پوهېدل او دا ذهنيت يې پيدا کړ چې بايد تل مطالعه وکړي؟
۳. آيا زده کوونکي متن لوستلی او ليکلی شي؟

کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د مطالعې په هکله يوه لنډه مقاله په خپلو کتابچو کې وليکي.

## څوارلسم لوست

# ناخپلواکې کلمې

موخې:

۱. د ناخپلواکو کلمو پېژندل.
۲. په جملو کې د ناخپلواکو کلمو ارزښت او دهغو کارول.
۳. د متن لوستل او ليکل.

هڅوونکې پوښتنې:

۱. آيا تاسو دناخپلواکو کلمو په هکله څه اورېدلي دي؟
۲. آيا ناخپلواکې کلمې هم په جملو کې خپل ځای او ارزښت لري؟
۳. آيا موږ په خپلو خبرو اترو کې هم ناخپلواکې کلمې کاروو؟

### ناخپلواکه توکي او کلمې:

هغه کوچني توکي چې په يوازې توګه نه کار ول کېږي. که په ځانګړې توګه وکارول شي معنا نه ورکوي. لکه: و- د- له- بې- کې- سره- ځينې......

ناخپلواکه توکي ډېر ډولونه لري چې ځينې يې دادي:

۱. سرينې: هغه توکي چې له خپلواکو کلمو څخه د مخه را شي. لکه : په کور کې ناست وم. له احمد سره راغلم. د نيکونو غوندې مو وطن وساته!
۲. پسبنې: هغه توکي دي چې تر خپلواکو کلمو وروسته راشي. لکه: د خبرو له پاره وخت نه لرم. په چا پورې نه خاندم، افغانانو په تاريخ کې خپله مېړانه ښودلې ده.
۳. دربط توري: هغه توکي دي چې د يوې جملې د اجزاوو ترمنځ د تړون له پاره راځي. او دوه جملې يا دوه برخې سره و نښلوي. لکه: زه را غلم خو ته نه وې. تا درس ولوست ليکن دی نه و راغلی.
۴. د عطف توري: هغه توکي دي چې د دوو کلمو يا دوو برخو ترمنځ راشي او يوه برخه له بلې برخې سره وتړي.
لکه: پښتو او ويدي دواړه لرغونې ژبې دي. پښتو د افغانستان رسمي او ملي ژبه ده. زه او ته ناست وو.

نوي لغتونه:

توکي- برخې، اجزاوې        مېړانه- مردانګي
تړون- پیوستون        لرغونی- پخوانی

**ښوونکي ته لاښوونې:**

۱. متن ولوله د خپلواکو او ناخپلواکو کلمو ترمنځ توپیر وښيه.
۲. د ناخپلواکو کلمو ارزښت په جملو کې وښيه.
۳. د متن دهرې برخې ځرګندونه په مثالونو کې وکړه.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

زده کوونکي دې متن ولولي او د هغه په مطلب دې خبرې وکړي.
د ښوونکي په لارښوونه دې زده کوونکي په لاندې جملوکې ناخپلواکې کلمې (سرينې، پسينې، د عطف او دربط (اړوند) توري) په نښه کړي.

الف. علم او پوهې ته ډېره پاملرنه وکړئ!
ب. هېواد پوهو او هوښیارو خلکو ته اړه لري.
ج. زموږ په ټولګي کې پوه زده کوونکي ډېر دي.
د. هوسۍ په نجونو کې ډېره ښه نجلۍ ده. خو دلته ډېره نه راځي.
هـ. زه له کار څخه نه ستړی کېږم، اما وخت نه لرم.

**ارزونه:**

۱. آیا زده کوونکي د ناخپلواکو کلمو په معنا او مفهوم وپوهېدل؟
۲. آیا زده کوونکي د خپلواکو او ناخپلواکو کلموترمنځ توپیر کولی شي؟
۳. آیا زده کوونکي متن لوستلی او لیکلی شي؟

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د ناخپلواکو کلمو په هکله په لنډ ډول په خپلو کتابچو کې ځرګند مثالونه راوړي او په یاد دې زده کړي.

پنځلسم لوست

# دلقمان حکیم نصیحتونه

موخې:

١. د لقمان حکیم په خبرو او نصیحتونو باندې پوهېدل.
٢. د دې ډول نصیحتونو عملي کولو ته دزده کوونکو هڅونه.
٣. د متن لوستل او لیکل.

هڅوونکې پوښتنې:

١. آیا تاسو د لقمان حکیم نوم اورېدلی دی؟
٢. آیا تاسو د لقمان حکیم په هکله د چا نه څه اورېدلي دي؟
٣. لقمان حکیم خپل زوی ته څه ډول نصیحتونه کول؟

## د لقمان حکیم نصیحتونه خپل زوی ته:

١. له نېک او هوښیار سړي سره مصلحت کوه!
٢. استاد د پلار په شان وبوله!
٣. له بې عقلو او ناپوهو خلکو څخه تښته!
۴. یوځل ویل شوې خبره دوهم ځل مه تکراروه!
۵. د ګټې او تاوان له پاره خپل عزت له لاسه مه ورکوه!
٦. د خلکو د خبرو په منځ کې مه ورلوېږه.
٧. مېړانه د ځان عادت وګرځوه.
٨. دلمر ختو په وخت کې مه ویده کېږه!
٩. د بل کورته چې ځې سترګې، ژبه او لاسونه په واک کې ولره!

نوي لغتونه:

مېړانه- نارینتوب       یوځل- یو وار       واک- اختیار

**ښوونکي ته لارښووني:**

۱. ښوونکی دې متن ولولي او د هغه په هکله دې خبرې وکړي.
۲. نصیحتونه دې د املا په توګه په زده کوونکو باندې ولیکي.
۳. متن دې په زده کوونکو باندې په وار سره ولولي او د هغه په مفهوم دې وغږېږي.

**د زده کوونکو فعالیتونه:**

۱. زده کوونکي دې متن ولولي او د هغه په اړه دې خبرې وکړي.

۲. زده کوونکي دې په دوه کسیزه توګه متن ولولي. بیا دې یو بل ته د هغه مرام څرګند کړي.

۳. زده کوونکي دې دا لاندې لغتونه وروسته تر معنا په جملو کې وکاروي او په کتابچو کې دې ولیکي.

(پوه، ګټه، مېړانه، واک، ستر)

**ارزونه:**

۱. آیا زده کوونکي د لقمان حکیم په نصیحتونو باندې وپوهېدل؟
۲. آیا زده کوونکي نصیحتونه له یاده ویلی شي؟
۳. آیا زده کوونکي متن لوستلی او لیکلی شي؟

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د لقمان حکیم نصیحتونه په کتابچو کې ولیکي او هغه دې په یاد زده کړي.

شپاړسم لوست

# وزیر محمد اکبرخان



موخې:

۱. د وزیر محمد اکبر خان پېژندنه.
۲. د هېواد د غازیانو او اتلانو له تاریخ څخه خبرېدل.
۳. د متن لوستل او لیکل.

هڅوونکې پوښتنې:

۱. آیا تاسو د وزیر محمد اکبر خان نوم اورېدلی او هغه پېژنئ؟
۲. تاسو له انګریزانو سره د آزادۍ په جګړو کې د غازیانو او اتلانو نومونه اورېدلي دي؟
۳. مور ولې د خپل هېواد د تېرو وختونو غازیان او اتلان یادوو؟

زموږ په هېواد کې ډېر نومیالي غازیان او اتلان تېر شوي دي، چې له هغو څخه یو هم وزیر محمد اکبر خان دی. وزیر محمد اکبر خان د امیر دوست محمد زوی او په ۱۲۳۲ هـ ق کال کې زېږېدلی و.

غازي محمد اکبر خان د افغان او انګلیس په لومړۍ جګړه کې له غازیانو سره یو ځای د هېواد په آزاد ولو کې ډېره لویه ونډه اخیستې وه.

وزیر محمد اکبر خان د ډېرو ښو اخلاقو څښتن و. پر بې وزلو زړه سواند او د ظالمانو او تیري کوونکو سخت مخالف و.

په جګړه کې د جنګي اسیرانو او د نیول شوو بندیانو قدر یې د میلمنو په شان کاوه. د هغو روغتیا او سلامتیا ته به یې پاملرنه کوله. تردې پورې چې د هغوی په ټپونو باندې به یې په خپله پټۍ لګولې.

د خپل هېواد له خلکو سره یې ډېره مینه درلوده او خپلو خلکو ته له ډېرو خدمتونو څخه وروسته د ۳۰ کلو په عمر په ۱۲۷۲ کال کې وفات او د ده له سپارښتنو سره سم په مزار شریف کې خاورو ته وسپارل شو. روح دې ښاد وي.

نوي لغتونه

اتلان- قهرمانان　　ټپونه- زخمونه، پرهارونه　　ونډه- برخه

نومیالي- مشهور　　تېري کوونکي- ظالمان　　جنګي اسیران- په جګړو کې نیول شوي بندیان.

### ښوونکي ته لارښوونې:

۱. ښوونکی دې متن ولولي او د وزير محمد اکبر خان د شخصيت په هکله دې خبرې وکړي.
۲. متن دې د املا په توګه په زده کوونکو باندې وليکي.
۳. په متن کې راغلې کلمې او د هغو ډولونه دې د ګرامر له مخې وښيي او په زده کوونکو دې وليکي.

لکه: وزير محمد اکبر خان (خاص نوم) دی.

الف. امير دوست محمد خان ( )
ب. مزار شريف ( )
ج. افغان ( )
د. غازيان ( )
هـ- سلامتيا ( )
و- جګړه ( )
ز- هېواد ( )

### زده کوونکو فعاليتونه:

۱. زده کوونکي دې متن ولولي او بيا دې د هغه مطلب په ساده توګه و وايي.
۲. زده کوونکي دې دغو پوښتنو ته ځوابونه ووايي.

الف. وزير محمد اکبر خان د چا زوی و؟
ب. وزير محمد اکبر خان کوم ښه صفتونه درلودل؟
ج. وزير محمد اکبر خان د هېواد د خپلواکۍ له پاره څه ډول خدمتونه کړي دي؟
د. د وزير محمد اکبر خان مړينه په کوم کال پېښه شوې او مقبره يې چېرې ده؟

### ارزونه:

۱. آيا زده کوونکو وزير محمد اکبر خان و پېژانده؟
۲. آيا زده کوونکي په دې وپوهېدل چې وزير محمد اکبر خان د هېواد د خپلواکۍ په ګټلو کې لويه ونډه اخيستې وه؟
۳. آيا دوی د وزير محمد اکبرخان په هکله معلومات ور کولی شي؟
۴. آيا متن لوستلی او ليکلی شي؟

### کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د وزير محمد اکبر خان لنډه پېژندګلوي په خپلو کتابچو کې وليکي او هغه دې په ياد زده کړي.

## اوو لسم لوست

# د شاعر ډالۍ

موخې:

۱. زده کوونکي باید د ډالۍ په معنا او مفهوم وپوهېږي.
۲. د متن لوستل او لیکل.

هڅوونکې پوښتنې:

۱. تاسو د ډالۍ په معنا او مفهوم پوهېږئ؟
۲. ستاسو په فکر ظلم کول څه ډول عمل دی؟
۳. تاسو څه فکر کوئ چې شاعر به ظالم او مظلوم ته په کومه سترګه ګوري؟

زه چې ور غلم هغه په کوټنۍ کې ناست و. سریې په ګرېوان کې ښکته کړی و. فکري عبادت یې کاوه.

کله چې یې سر را پورته کړ او پرما یې نظر ولګېد. ما خپله ډالۍ (د یوه پړانګ پوستکی او یو غزنیچې پوستین) دهغه په مخ کې کېښودل.

هغه وویل: ((دا د یوه ظالم پوستکی دی څکه له پښو لاندې لویږي، او دا بل د کمزورو له پوستکو څخه جوړ دی او په غاړې پورې اړه لري.دشاعر ډالۍ ښایي همدغسې وي او همدغه معنا ولري.

دی باید دا دوه منظرې همدغه راز وښيي او خلک په دغه رمز پوه کړي.)) په دغو خبرو زه له خوبه را ویښ شوم او په خوب کې د خپل خوب په تعبیر پوهېدلی وم.

نوي لغتونه:

| | | | |
|---|---|---|---|
| ډالۍ- | تحفه | رمز- | راز |
| کوټنۍ- | ، وړه کوټه | همدا راز- | همدا ډول |

ښوونکي ته لارښوونې:

۱. ښوونکی دې متن ولولي او دهغه په مطلب دې خبرې وکړي.
۲. د زده کوونکو پام دې ته را واړوي چې یو شاعر ظالم او مظلوم څه ډول را ښیي؟
۳. متن دې د املا په توګه په زده کوونکو باندې ولیکي.
۴. د تېرې کوونکو دکړو وړو څینې مثالونه دې د نمونې په توګه ووایي.

د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې مطلب ولولي او دهغه په هکله دې خبرې وکړي!
۲. په دې هکله دې هم خبرې وکړي چې خلک تېري کوونکو ته په کرکه ګوري.
۳. دا لاندې کلمې دې په مناسبو جملو کې راوړي.

| | |
|---|---|
| الف. ډالۍ | د. تعبیر |
| ب. مظلوم | هـ. خلک |
| ج. کوټنۍ | |

ارزونه:

۱. آیا زده کوونکي د درس په معنا او مطلب باندې وپوهېدل؟
۲. آیا زده کوونکي په دې هم پوه شول چې د تېري کوونکو او مظلومانو کړه وړه ډېر توپیر لري؟
۳. آیا زده کوونکي متن لوستلی او لیکلی شي؟

کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په متن کې متضادې کلمې پیدا، هغه دې په جملوکې وکاروي او په کتابچو کې دې ولیکي.

( ظالم اومظلوم ـ توراوسپین ـ ښه او بد)

اتلسم لوست

# تاړي (وندونه)

موخې:

۱. زده کوونکي دې له خپلواکو کلمو سره تاړي وپېژني.
۲. د تاړو (وندونو) په کارولو باندې پوهېدل.
۳. د متن لوستل او ليکل.

هڅوونکې پوښتنې:

۱. آيا تاسو د تاړو يا وندونو نوم اورېدلی دی؟
۲. آيا تاسې پوهېږئ چې تاړي په خپلواکو کلمو کې ډېر ارزښت لري؟
۳. آيا تاسې پوهېږئ چې تاړي هم لکه نورې کلمې په ويناوو او ليکنو کې ډېر ارزښت لري؟

## تاړي (وندونه)

تاړي هغه نا خپلواکې کلمې دي چې د خپلواکو کلمو په سر او پای کې نښلول کېږي. او نورې کلمې ترې جوړېږي.

تاړی دا ډولونه لري مختاړي او وروستاړي:

### ۱- مختاړي (پيشوندونه)

هغه ناخپلواکې کلمې دي چې د کلمو په سرکې نښلول کېږي لکه دکار له کلمې سره: بېکار، همکار، ناکاره، سرکار، خود کار همدارنګه: مه کوه، نه کول، نازړه، بې زړه، بې فکره، بې لاسه، بې پوهې.

### ۲- وروستاړي (پسوندونه)

هغه نا خپلواکې کلمې دي چې د کلمو په پای کې ونښلي او نورې کلمې ترې جوړې شي.

لکه: (د کار له کلمې سره وروستاړي) کارګر، همدارنګه پوهنتون، وړين، غمجن، ختګر، زرګر، ولسوال، مېوندوال، احمدزی، شريفه، طلايي، لوبغالی، ښوونکی، وياړونه او نور.

نوي لغتونه:

| | | | |
|---|---|---|---|
| وړين- | پشمي او له وړيو جوړ شوی | لوبغالی- | د لوبو ځای |
| پروردګار- | پالوونکی، ساتونکی | وياړونه- | افتخارات |

### ښوونکي ته لارښوونې:

۱. ښوونکی دې متن ولولي او په ناخپلواکو کلمو دې رڼا واچوي.
۲. خپلواکو کلمو کې دې تاړي او د هغو ډولونه له بېلګو سره وښيي.
۳. په کلمو کې دې تاړي او دهغو ارزښت وښيي.
۴. متن دې د املا په توګه په زده کوونکو باندې ولیکي.

### د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې متن په دوه کسيزه توګه ولولي او دهغه مطلب دې په ياد زده کړي.
۲. زده کوونکي دې په دې لاندېنيو جملو کې تاړي په نښه او په کتابچو کې و ليکي.

الف. چا ته بده خبره مه کوئ!

ب. په زورورو باندې قهر او غضب ډېر برلاسی وي.

ج. پښتو زما مورنۍ ژبه ده.

د. افغانستان ډېر تاريخي وياړونه لري.

هـ. بې علمه ژوندون ګران دی.

و. کتاب زما يوازينی ملګری دی.

### ارزونه:

۱. زده کوونکو وندونه يا تاړي وپېژندل؟
۲. زده کوونکي د وندونو ډولونه په کلمو کې ښودلی او کارولی شي؟
۳. زده کوونکي متن لوستلی او ليکلی شي؟

### کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په دې لاندېنيو کلمو کې تاړي را وښيي او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي.

( وړکتون لوبغاړی، لوبغالی، زيارکښ، وطنوال، بې وطنه، بې فکره،افغانستان، هندوستان، ياران )

## نولسم لوست

# د افغانستان طبيعي زېرمې

موخې:

۱. زده کوونکي باید د خپل هېواد طبيعي زېرمې وپېژني.
۲. د طبيعي زېرمو په ارزښت او ساتلو باندې وپوهېږي.
۳. متن سم ولولي او سم يې وليکي.

هڅوونکې پوښتنې:

۱. طبيعي زېرمې څه ته وايي؟
۲. تاسو د طبيعي زېرمو په هکله څه اورېدلي دي؟
۳. موږ په خپل هېواد کې طبيعي زېرمې لرواو هغه به څه شی وي؟
۴. زموږ د هېواد غرونه، ځنګلونه او سيندونه څه ارزښت لري او په طبيعي زېرمو کې ګڼل کېږي؟



زموږ ګران وطن افغانستان يو غرنی هېواد دی. زياتره غرونه يې په مرکزي شمالي، ختيځو او نورو برخو کې پراته دي چې په آب و هوا يې ډېره ښه اغېزه کړېده.

غرونه د واورو له امله د يخچالونو پراخې سيمې جوړوي چې په بدخشان کې لوی پامير د يوه طبيعي پارک په توګه يا دولې شو. همدارنګه د هندوکش، سليمان، او د ترکستان د تيربند د غرونو لړۍ د يادولو وړ دي چې لوی، شتمن کانونه او معدنونه لري.

زموږ په هېواد کې ولاړې اوبه يا جهيلونه هم د ښکلو منظرو په شان موجود دي لکه: د غزني ولاړې اوبه او د باميانو بندامير، چې د بهرنيو سيلانيانو پاملرنه يې هم ځانته را اړولې ده.

ځنګلونه هم دطبيعي زيرمو غوره برخه ده، چې د غرونو په لمنو کې يې د ژوو او ځناورو له پاره څر ځايونه او داستوګنې سيمې جوړې کړېدي. سربېره پردې چې د هوا په ښه والي او پاکوالي کې يې مرسته کړې ده، د سيلابونو او وچو بادونو مخنيوی هم کوي.

ځنګلونـه زمـوږ د هېـواد پـه مرکـزي، ختيځـو، او جنـوبي سـيمو لکـه لويـه پکتيا ،ننګرهار کونړونو، بادغيس، بدخشان او هرات کې موجود دي.
د دغـو طبيعـي شـتمنيو سـاتنه او پالنـه د هر افغـان ايمـاني او ملـي دنـده ده ځکـه پوهېږو، چې وني د وخت په تېرېدو سره د مرضونواو نورو علتونو په سبب لـه منځـه ځي او ولې يې پرې کېږي. که موږ د هغو په ساتنه او ډېربنت کې ټينګه پاملرنه و نه کړو، دغه طبيعي شتمني به زموږ نورو نسلونو ته پاتې نه شي.

نوي لغتونه:

| | | | |
|---|---|---|---|
| ختيځ- | شرق ، د لمر راختلو ځای | ځرځايونه- | دځريدو ځايونه. |
| کانونه – | معدنونه | لويديځ- | غرب دلمر لوېدلو ځای |
| ډېربنت- | ډېروالی | کمښت – | کموالی |

ښوونکي ته لارښووونې:

۱. ښوونکی دې متن ولولي او د طبيعی زيرمو په هکله دې معلومات وړاندې کړي.
۲. متن دې په زده کوونکو باندې د املا په توګه وليکي.
۳. په افغانستان کې دې د غرونو او سيندونو په موقعيت او ارزښت خبرې وکړي.

دزده کوونکو فعاليتونه:

۱. زد کوونکي دې متن ولولي او د طبيعي زيرمو په ارزښت دې خبرې وکړي.
۲. د خپل هېواد طبيعي شتمنۍ دې په ساده ډول وښيي.
۳. دا لاندې کلمې دې وګوري او د هغو هم معنا کلمې دې ورته پيدا کړي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| الف. زېرمې | دارايي | پيسې | ذخيرې |
| ب. اغېزه | هوا | تاثير | لاندې |
| ج. څرځايونه | صحرا | د څرېدو ځای | د اوسېدو ځای |
| د. جهيلونه | يخچالونه | ولاړې اوبه | ښکلي منظرې |
| هـ. طبيعي زېرمې | آب وهوا | هستي | طبيعي شتمني |

ارزونه:

۱. زده کوونکي د طبيعي زېرمو په ارزښت ويوهېدل؟
۲. د خپل هېواد طبيعي زېرمې يې و پېژندلې، چې کومو شيانو ته ويل کېږي؟
۳. متن لوستلی او ليکلی شي؟

کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې متن ولولي او په لنډه توګه دې هغه په ياد زده کړي او په خپلو کتابچو کې دې وليکي.

## شلم لوست

# خوشحال خان ختک!

موخې:

۱. د خوشحال خان ختک پېژندنه.

۲. له پخوانیو شاعرانو او ادیبانو سره د زده کوونکو پېژندګلوي.

۳. د متن لوستل او لیکل.

هڅوونکې پوښتنې:

۱. آیا تاسو له پخوانیو شاعرانو څخه د خوشحال خان نوم اورېدلی دی؟

۲. څه فکر کوئ چې خوشحال خان څه ډول شاعر و؟

۳. له خوشحال خان څخه به موږ ته څه شی را پاتې وي؟



خوشحال خان ختک د پښتو ژبې یو نومیالی، ننګیالی او توریالی شاعر دی چې د افغان په ننګ یې توره تر ملا کړې وه لکه چې خپله وایي:

د افغان په ننګ مې وتړله توره
ننګیالی د زمانې خوشحال ختک یم.

خوشحال ختک له ۲۵۰ زیات کتابونه لکیلي وو او په خپل زیار یې داسې ښه ور ښنلي وه چې نامتو لیکوالان پرې هم نازېږي لکه الفت صاحب چې ویلي دي:

### خوشحال خان ختک ته!

| | |
|---|---|
| دادب او د شعر لویه قهرمانه | د مُغلو په کور تندر له آسمانه |
| د وطن د آزادۍ سخت جګړوکې | له هرچا نه زړور مرد میدانه |
| ستا د شعر مصرع لا ډېره تېره ده | بې ننګي ټوټې ټوټې ستاله بیانه |
| دا د رزم او د بزم په مجلس کې | هلته بازدلته بلبل هزار داستانه |
| هم رستم هم فردوسي د یوداستان یې | هم شاعر هم مُفکر هم پهلوانه |
| ستا دیوان که په ادب کې لوی شهکار دی | تا په توره کې هم کړی ډېر لوی کار دی |
| د افغان په ننګ تړلې توره تا وه | درسره لویه آرزو لویه سودا وه |

الفت

نوي لغتونه:

فردوسي. د دري ژبې لوی شاعر

رزم– جګړه

بزم- مجلس او ناسته

مفکر- فکرکوونکی

رستم- دفردوسي په شهنامه کې دیوه قهرمان نوم و.

شهکار- ډېر لوړ کار

مُغل- د یوه قوم نوم و چې د بابر کورنۍ ور پورې منسوبه وه.

ښوونکي ته لارښوونې:

۱. ښوونکی دې ذکر شوی شعر د کتاب له مخې ولولي او پوره دې معنا کړي.
۲. د خوشحال خان په شخصیت او ادبي خدمتونو باندې دې خبرې وکړي.
۳. شعر دې د املا په توګه په زد ه کوونکو باندې ولیکي.
۴. شعردې په زده کوونکو باندې په نثر واړ وي.

د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي د ې شعر ولولي او معنا دې کړي.

۲. زده کوونکي دې دا جملې ولولي او په کتابچو کې دې ولیکي.

الف. خوشحال خان د خپلې زمانې ملي اتل، ستر ادیب،او لوی شاعر و.

ب. له خوشحال خان څخه د پښتو ژبې د نظم او نثر کتابونه را پاتې دي.

ج. خوشحال خان دخپلې خاورې د آزادۍ له پاره د مُغلو له لویې امپراتورۍ سره ډېر جنګونه او جګړې کړېدي.

د. خوشحال خان په خپل وخت کې د خپلو خلکو او قام ستر مخکښ او لارښود و.

ارزونه:

۱. آیا زده کوونکي د خوشحال خان له نومیالیتوب او پوهې څخه خبر شول؟
۲. آیا زده کوونکي و پوهېدل چې خوشحال خان ختک د پښتو ژبې لوی شاعر تېرشوی دی؟
۳. آیا زده کوونکي د شعر له مطلب څخه متن لیکلی او لوستلی شي؟

کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د خوشحال خان ختک په هکله یوه لنډه او په زړه پورې مقاله ولیکي.

## یو ویشتم لوست

# ستاینوم (صفت)

**موخې:**

۱. دستاینوم یا صفت پېژندنه.
۲. په خبرو او لیکنو کې د صفتونو سم کارول.
۳. د متن سم لوستل او سم لیکل.

**هڅوونکې پوښتنې:**

۱. آیا تاسو له صفت سره آشنا یاستئ او هغه پېژنئ؟
۲. صفت څه ته وایي او ولې هغه باید وپېژنو؟
۳. زموږ په خبرو او لیکنو کې صفت هم شامل دی؟

**صفت** هغه کلمه ده چې د نوم حالت او څرنګوالی وښیي. صفتونه تل له خپل موصوف سره یو ځای راځي. لکه: توري ځپلۍ، شین آسمان، پوه هلک او نور.

**دصفت مهم ډولونه:**

۱. **اصلي صفتونه:** هغه دي چې دنوم ذاتي ښه والی او بدوالی وښیي لکه: توره تخته، ښه سړی، هوښیاره نجلۍ، جګه ونه، ناپوه سړی، سپین کاغذ.
۲. **نسبتي صفتونه:** هغه کلمې چې نسبت یې بل نوم، شي یا حالت ته وشي لکه: کابلی، میوندوال، سلیمان خېل، قیمتي، طلایي، اونور.
۳. **مجرد صفتونه:** هغه دی چې یوازې یو مجرد وصفي مفهوم وي یعنې خارجي وجود و نه لري. لکه: لېونتوب، لوړتیا هوښیارتیا، پښتونولي.
۴. **اشاري صفتونه:** هغه صفتونه چې د هغو په واسطه موصوف ته اشاره وشي لکه: دغه نجلۍ درس وایي. هغه ونه سورسیوری لري، دا د ابن سینا ښوونځی دی، هغه ښځه ډوډۍ پخوي.

نوي لغتونه:

صفت – ستایل
ستاینوم- صفت یا د نوم ستایونکی
یاد ونه- موصوف هغې کلمې ته وایي چې صفت د هغه له پاره راغلی وي لکه: توري ځپلۍ چې تور یې صفت او ځپلۍ یې موصوف دی، په اشاري صفت کې دغه نږدې اشاره – هغه لرې اشاره او هوغه ډېره لرې اشاره ده.

**ښوونکي ته لارښوونې:**

١. ښوونکی دې متن ولولي اودهغه په هکله دې په جلا جلا توګه څرګندونې وکړي.
٢. متن دې په زده کوونکو باندې د املا په توګه وليکي.
٣. له زده کوونکو څخه دې وغواړي چې د خپل ځان د غړو نومونه د صفت او موصوف په شکل را وړي، او په زده کوونکو دې په کتابچو کې وليکي.

لکه: تورې ځپلې ـ سپين غاښونه ـ ښکلي لاسونه ـ جګه ونه او لوی زړه..........

## د زده کوونکو فعاليتونه:

١. زده کوونکي دې متن په دوه کسيزه توګه ولولي او يو بل ته دې څرګندونې وکړي.
٢. د خپل ټولګي او چاپيريال د ځينو شيانو نومونه دې د صفت او موصوف په توګه راوړي او بيا دې په کتابچو کې وليکي.

لکه: سپين ديوال، لوی صنف، ښکلي ګلان، پوه زده کوونکي، تور قلم، لايق ښوونکی، داهلک، او هغه ونه ............

٣. په دې لاندې متلونو کې دې صفت او موصوف په نښه او بيا دې په خپلو کتابچو کې وليکي.

الف. ترنادان دوست څخه هوښيار دښمن ښه دی.
ب. له بې پته ژوند څخه مرګ غوره دی.
ج. کوږ بار تر منزله نه رسيږي.

**ارزونه:**

١. آيا زده کوونکي دصفت او موصوف په معنا او مفهوم وپوهېدل؟
٢. د صفت ډولونه يې هم وپېژندل؟
٣. په خبرو او ليکنو کې له دې وروسته صفتونه کارولی شي؟

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د متن مطلب په خپلو کتابچوکې وليکي او په ياد دې زده کړي.



دوه ویشتم لوست

# قیمتي ډبرې

موخې:

۱. د قیمتي ډبرو په خصوصیاتو او ارزښتونو باندې پوهېدل.
۲. زده کوونکي د خپل هېواد قیمتي ډبرې وپېژني.
۳. متن سم ولولي او سم یې ولیکي.

هڅوونکې پوښتنې:

۱. تاسو داسې رنګه ډبرې لیدلې چې له عادي ډبرو څخه توپیر ولري؟
۲. تاسو پوهېږئ چې کټورې، رنګه او ښُکلې ډبرې په کوم نامه یادېږي؟
۳. زموږ په هېواد کې رنګه او ښُکلې ډبرې شته، هغه څه ارزښت لري؟

زموږ چاپېریال له طبیعي موادو څخه ډک دی. ځینې ډبرې یې له هغو موادو څخه دي چې په غرونو او درو کې په بېلابېلو ډولونو سره پیدا کېږي. د دغو ډبرو طبیعي رنګونه ډېر ښکلي او په زړه پورې دي چې د منرالونو په نامه یادېږي.

منرالونه هغه ډبرې دي، چې په طبیعي توګه ښکلې او مختلف شکلونه لري. ځینې ځلا لرونکي، ځینې یې نیمه ځلا لرونکي او ځینې نورې یې بې ځلا دي.

ځلا لرونکي منرالونه په طبیعي توګه ښُکلي، ارزښتمن او په زړه پورې رنګونه او شکلونه لري. چې له دغو ډبرو څخه د غمیو په توګه په ګاڼو او زېورونو کې کار اخیستل کېږي لکه: یاقوت، زمرد، لاجورد، عقیق، الماس او نور.

یاقوت ځلا لرونکې ډبره ده چې ډېر صفا سور رنګ لري. زمرد په ښکلي شنه رنګ پیدا کېږي.

عقیق هم تور، سپین، ژېړ او نور رنګونه لري. الماس تر ټولو ډبرو د لوړې بیې او ځلا لرونکې دی. چې سپین روښان رنګ لري او ډېر لږ پیدا کېږي.

په دې ترتیب تر **۳۵** ډوله زیاتې مختلفې قیمتي ډبرې زموږ د ګران هېواد په طبیعت کې موجودې دي. چې د بدخشان، پروان، کندهار، نورستان، کابل، میدان، او د نورو مرکزي سیمو له غرونو څخه لاس ته راځي.

نوي لغتونه:

ډبره- تيږه ګاڼې – زيورات

**ښوونکي ته لارښووني:**

۱. ښوونکی دې متن ولولي او د قيمتي ډبرو په هکله دې زده کوونکو ته معلومات ورکړي.
۲. د قيمتي ډبرو په رنګونو دې خبرې وکړي.
۳. زموږ په هېواد کې دې د هغو سيمو نومونه په زده کوونکو باندې تکرار کړي چې قيمتي ډبرې لري.
۴. متن دې د املا په توګه په زده کوونکو باندې په کتابچو کې وليکي.

**د زده کوونکو فعاليتونه:**

۱. زده کوونکي دې متن ولولي او دهغه په مطلب دې خبرې وکړي.
۲. زده کوونکي دې د لاندې کلمو په مرسته نيمګړې جملې بشپړې او بيا دې په کتابچو کې وليکي.

الف. هغه قيمتي ډبره چې ډبره کمه او ډبره کلکه ده، ..........نومېږي.
ب. هغه ډبرې چې په طبيعي توګه ښکلي او مختلف شکلونه لري، ............ نومېږي.
ج. ياقوت صفا او ځلا لرونکې ډبره ده چې، ................رنګ لري.
د. په طبيعت کې ............. قيمتي ډبرې يا منرالونه موجود دي.
(۳۵ ډوله – سور – الماس – منرالونه)

۳. زده کوونکي دې په لوستل شوي متن کې څو صفتونه پيدا کړي او په کتابچو کې دې وليکي.

**ارزونه:**

۱. زده کوونکي و پوهېدل چې زموږ ګران هېواد هم ښکلي او با ارزښته قيمتي ډبرې لري؟
۲. زده کوونکو قيمتي ډبرې او دهغو ډولونه و پېژندل؟
۳. د لوستل شوي متن کلمې لوستلی او ليکلی شي؟

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې متن په خپلو کتابچو کې وليکي او دهغه مطلب دې په ياد زده کړي.

درویشتم لوست

# کمپیوټر



موخې:

۱. زده کوونکي باید کمپیوټر وپېژني.
۲. د نړۍ له نوو اختراعاتو او اکتشافاتو څخه خبر شي.
۳. د متن لوستل او لیکل وکړای شي.

هڅوونکې پوښتنې:

۱. تاسو د کمپیوټر نوم اورېدلی او دهغه په هکله څه ویلی شئ؟
۲. تاسو څه فکر کوئ چې کمپیوټر به کوم کارونه سرته رسولی شي؟

کمپیوټر هغه نوی ماشین دی چې د انسانانو بې شمېره ټولنیزې ستونزې حل کړې او لاد بشر په خدمت کې دی. دا ماشین د لومړي ځل له پاره په ۱۹۴۲ م کال د امریکایي (الاتا سوټ برې) په وسیله اختراع شو او له هغه وخت څخه یې تر اوسه ډېره پراختیا موندلې ده.

کمپیوټر له څلورو اساسي برخو څخه جوړ شوی دی.

لومړۍ برخه یې سکرین یا مانیټور نومېږي. دا هغه پرده یا صفحه ده چې د کمپیوټر پروګرامونه او خپروني په کې لیدل کېږي.

دوهمه برخه: (پي، سي، یو) ده، چې د کمپیوټر اساسي او مهمه برخه ګڼل کېږي او همدې برخې ته د کمپیوټر حافظه وایي.

دریمه برخه: یې د کیبورډ برخه ده، چې د کمندونو توري او نورې لارښوونکې کلې په دې برخې پورې اړه لري.

څلورمه برخه: د (موس) mouse یا موږک په نامه یادېږي، چې کمندونه د هغه په وسیله کارول کېږي.

کمپیوټر ټول معلومات په خپله حافظه کې ساتي که څوک هر وخت و غواړي له هغه څخه کار اخیستلی شي او هم کولی شي چې هغو معلوماتو ته بدلون ورکړي.

نوي لغتونه:

مډرن- ډېر نوی او پر مختللی　　ستونزې – کړاوونه او مشکلات　　بدلون- تغير

### ښوونکي ته لارښوونې:

۱. ښوونکی دې د کمپيوټر متن ولولي او د هغه په هکله دې زده کوونکو ته ځرګندونې وکړي.
۲. د کمپيوټر متن دې په زده کوونکو باندې د املا په توګه وليکي.
۳. د کمپيوټر د دغو برخو په هکله دې ځرګندونې وکړي.
الف. د کيبورډ برخه يعني..................................
ج. مانيتور هغه پرده ده چې ......................
د. د موس برخه هغه ده چې ..........................

### د زده کوونکو فعاليتونه:

۱. زده کوونکي دې متن ولولي او په هغه دې خبرې وکړي.
۲. زده کوونکي دې له يو بل څخه دا برخې وپوښتي:

الف. موس د کمپيوټر کومه برخه ده؟
ب. مانيتور څه ته وايي؟
ج. سي، پي، يو د کمپيوټر د کومې برخې نوم دی؟
د. کيبورډ په کمپيوټر کې څه شی دی؟

### ارزونه:

۱. آيا زده کوونکو کمپيوټر و پېژاند؟
۲. زده کونکي د کمپيوټر له بېلا بېلو برخو سره آشنا شول؟
۳. د کمپيوټر په کارونو او له هغو څخه په ګټه اخيستلو و پوهېدل؟

### کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د کمپيوټر د بېلابېلو برخو نومونه واخلي، هغه دې په ياد زده کړي او بيا دې په خپلو کتابچو کې وليکي.

## څلور ویشتم لوست

# ضمیرونه

موخې:

۱. د ضمیرونو یا نومځرو پېژندل.
۲. په جملو کې د ضمیرونو سم کارول.
۳. د متن سم لوستل او سم لیکل.

هڅوونکې پوښتنې:

۱. تاسو کله دضمیر کلمه اورېدلې ده؟
۲. ولې باید ضمیرونه وپېژنو؟

**ضمیرونه** هغه کلمې دي چې د نوم پرځای د تکرار د لرې کولو لـه پاره راځي. لکه: زه، موږ، ته، تاسې، دی، دا، دوی، هغه، دغه، هغوی.

د ضمیرونو مهم ډولونه دادي:

۱- شخصي ضمیرونه:

هغه دي چې دیوه شخص یا وګړي له پاره راشي لکه:

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| د متکلم له پاره: | زه | - | ما - | موږ |
| د مخاطب له پاره: | ته | - | تا - | تاسې |
| دغائب له پاره: | دی | - | دا - | دوی |

مثالونه: زه راغلم ته نه وې! _ دوی راغلل _ ما کتاب واخیست.

۲- اشاري ضمیرونه:

هغه دي چې شخص یا شي ته د اشارې له پاره راشي لکه: دغه وایي، هغه راغی، دا زما ملګری دی. اشاري ضمیرونه عموماً د نږدې لـه پاره (دغـه) _ د لـرې لـه پـاره (هغه) او ډېر لرې له پاره (هاغه) د اواز په تغیر راځي.

۳- ملکي یا اضافي ضمیرونه:

هغه ضمیرونه چې ملکیت وښیي لکـه: زمـوږ وطـن د نومیـالیو کـور دی. سـتا کـړنـه مې خوښه شوه. زما قلم ښه دی. د دوی کتابونه وساته! قلـم مـې راکـړه! غـږ دې نـه اورېدل کېږي. بکس یې واخیست.

د متکلم له پاره: (مې)
د مخاطب له پاره: (دې)
د غائب له پاره: د (یې) ضمیرونه راوړل کېږي.

نوي لغتونه:

وګړي- خلک، مخاطب ـ اوریدونکی، متکلم ـ ویونکی،

غائب ـ چې حاضر نه وي (دریم سړی)

**ښوونکي ته لارښوونې:**

۱. ښوونکی دې متن ولولي او د هغه په مطلب دې خبرې وکړي.
۲. ضمیرونه او د هغو ډولونه دې په مثالونو کې له توپیر سره بیان کړي.
۳. متن دې په زده کوونکو باندې تکرار او په یاد زده کړي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې په دې لاندې جملو کې د ضمیر ډولونه را وښيي.

الف. دا زما استاد دی.

ب. دوی ټول ټولګي ته را غلل.

ج. ورور مې له بهر څخه را ورسېد.

د. مورې د جمعې په ورځ میلې ته ځو.

هـ. زه سبا ته د امتحان له پاره چمتو یم.

۲. زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ورکړي او بیا دې په کتابچو کې ولیکي.

الف. ضمیرونه تعریف او په مثالونو کې یې څرګند کړئ!

ب. شخصي ضمیر کوم ډول ضمیر ته ویل کیږي؟ په ټولګي کې یې مثالونه ور کړئ!

ج. اشاري ضمیرونه څه ته وایي؟ آیا په ټولګي یا ښوونځي کې یې مثالونه ویلی شئ؟

د. ملکي یا اضافي ضمیرونه وښيئ، د کورنۍ په غړو کې یې مثالونه ور کړئ!

لکه: زما پلار ډېر کار کوي، زما ورونه زده کوونکي دي، مور مې ډاکټره ده.

ارزونه:

۱. آیا زده کوونکو ضمیرونه وپېژندل؟
۲. زده کوونکي د ضمیرونو په ډولونو هم و پوهېدل؟
۳. زده کوونکو په جملو کې ضمیرونه پېژندلي او هغه لیکلی شي؟

کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې متن ولولي او د هغه مطلب دې په ساده ډول په یاد زده کړي.

## پنځه ويشتم لوست

# لنډۍ

**موخې:**

۱. زده کوونکي بايد لنډۍ وپېژني.
۲. د لنډيو توپير له نورو اشعارو سره کولی شي.
۳. لنډۍ لوستلی او ليکلی شي.

**هڅوونکې پوښتنې:**

۱. آيا تاسو د لنډيو په برخه کې څه اورېدلي دي؟
۲. تاسو ويلی شئ چې لنډۍ به څه ډول اشعار وي؟
۳. تاسو پوهېږئ چې لنډۍ يوازې په کومه ژبه کې موجودې دي؟

لنډۍ هغه ولسي، ملي اشعار دي چې شاعران يې معلوم نه دي. د هر حساس پښتانه او پښتنې د زړه غږ او د احساساتو هنداره بلل کېږي. دا ملي اشعار يوازې د پښتو ژبې او پښتون ولس د ادبي ميراث ستره پانګه ده چې په نورو ژبو کې يې سارى نه ليدل کېږي.
لنډۍ ډېر ډولونه لري. لکه: د هېواد پالنې لنډۍ، ټولنيزې لنډۍ، جنګي لنډۍ، عشقي لنډۍ او نورې.
له نورو اشعارو څخه د لنډيو يو توپير دادی چې ويونکي يې معلوم نه دي. تر ويلو وروسته د خلکو مال ګرځي او ولسونه يې نسل په نسل يو بل ته لېږدوي.
دا اشعار خومره چې ساده او سپېڅلي دي، هغومره د نورو ژبو له اغېزو څخه هم پاک ساتل شوي. لنډۍ ځانته سيلابي سيستم لري، چې لومړۍ برخه يې لنډه (۹) څپې او دوهمه برخه يې اوږده (۱۳) څپې (سيلابه) ده.
د دغو اشعارو بله ځانګړتيا دا ده چې زياتره د ښځو له خوا نارينه ووته ويلې شوي، نو ځکه اغېزمنې او د نازکو احساساتو ترجمانې دي. او هم د ژوند په بېلا بېلو حالاتو لکه د غم او ښادۍ، د توري او مېړانې په وخت کې ويل شوې همدا دليل دی چې عشقي، حماسي، اخلاقي، ټولنيزې او نورې ډول ډول لنډۍ موجودې دي. چې هره برخه يې ځانته خوند او اغېزه لري.
لکه په لاندې لنډيو کې:

پــه وطـن نـيـمـه ډوډۍ ښــه ده
نه پــه پردي وطـن کې غوښې پلــوونـه

کــه تــور اوربــل مــې مــېراتـيـږي
په وطـن جـنـګ دی جانـان نـه منع کومه

---

حماسي لنډۍ: هغه لنډۍ دي چې د تورې، مېړانې، جنګ او جګړو په هکله ويل شوې وي.

نوي لغتونه:

هنداره ـ آیینه، شپې ـ سیلاب، هیجا، ځانګړتیاوې- خصوصیات

**ښوونکي ته لارښوونې:**

۱. ښوونکی دې متن ولولي او دهغه په باب دې پوره څرګندونې وکړي.
۲. دلنډیو په جوړښت او هیجاوو باندې دې خبرې وکړي.
۳. متن دې په زده کوونکو باندې د املا په توګه ولیکي.
۴. په دې لاندې لنډیو کې دې د هغو ډولونه و ښیي.

| | |
|---|---|
| که په میوند کې شهید نه شوې | خدا یږو لالیه بې ننګۍ ته دې ساتینه |
| خاونده سل ځله ژوند را کړې | چې د وطن په مینه سل ځله ځار شمه |
| که باران اوري و دې اوري | واوري دې نه اوري چې لارې بندوینه |
| که د زلمو نه پوره نه شوه | ګرانه وطنه! جنګۍ به دې ساتینه |
| وطن مې تن، تن مې وطن دی | د تن په بیه یې ساتم ترخو چې یمه |

**د زده کوونکو فعالیتونه:**

۱. زده کوونکي دې متن ولولي او دهغه په مطلب دې خبرې وکړي.
۲. زده کوونکي دې د لنډیو مهمې ځانګړتیاوې ولیکي.
۳. زده کوونکي دې لنډۍ ولولي او له یاده دې ووایي او بیادې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

**ارزونه:**

۱. زده کوونکي د لنډیو په معنا او مفهوم و پوهېدل؟
۲. لنډۍ له نورو اشعارو څخه توپیرولی شي؟
۳. لنډۍ ویلی او لیکلی شي؟

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د لنډیو په هکله یوځو کرښې ولیکي.
او لیکل شوې لنډۍ دې له یاده ووایي.

شپږ ویشتم لوست

# د آیوډین روغتیایي ارزښت

**موخې:**

۱. زده کوونکي په دې وپوهیږي چې آیوډین څه ته وایي؟
۲. د آیوډین منبع دې وپېژني او د انسان په جسمي وده کې دې د هغه په ارزښت وپوهېږي؟
۳. متن سم ولولي او ویې لیکي.

**هڅوونکي پوښتنې:**

۱. تاسو دآیوډین کلمه اورېدلې په دې برخه کې معلومات لرئ؟
۲. ستاسو په فکر آیوډین زموږ په سلامتیـ کې کوم ارزښت لري؟
۳. تاسې پوهېږئ چې د آیوډین د کمښت څخه په وجود کې ځینې ناروغیـ منځ ته راځي؟

## کاني ((معدني)) مواد

منرالونه د انسان د بدن له پاره ډېر ګټور او اړین دي، چې آیوډین هم یو له دغو څخه دی. ډېر خلک یې د غذایي موادو او اوبو له لارې تر لاسه کوي. په هغو سیمو کې چې له سمندر څخه لرې وي او دماهي غوښې هلته (د آیوډین یوه ښه منبع ده) په آسانیـ سره نه پیدا کېږي. خلک یې د آیوډین په کمښت اخته وي.

څرنګه چې آیوډین د انسان په جسمي وده او د دماغ د حجرو په جوړولو کې ډېره اغېزه لري، نو که د ماشوم په بدن کې آیوډین لږ وي. ماشوم له د ماغي کمزورتیا سره مخامخ کېږي. د ذکاوت اندازه یې د نورو عادي کوچنیانو پرتله په ټیټه درجه کې راځي او د وجود وده یې په ټولو برخو کې ډېره سسته او ضعیفه وي. په لویانو کې د آیوډین د لږوالي له کبله د غاړې مخکنیـ برخه (غُده) چې تایراید نومېږي لویېږي. اوپه جاغور بدلېږي.

دهغو خلکو په بدن کې چې آیوډین کم وي باید په خوړو کې آیوډین لرونکي مالګه استعمال کړي.

د کبانو غوښې او نور هغه خواړه دي وخوري چې د آیودین لرونکي وي همدا راز د آیوډین لرونکو درملو خوړل هم په بدن کې د آیوډین کمښت له منځه وړي.

نوي لغتونه:

کمښت- کموالی    وده- لوېېدل، نمو    پرتله- مقایسه    اغېزه- تاثیر    درمل- دوا

**ښوونکي ته لارښوونې:**

۱. ښوونکی دې متن د کتاب له مخې ولولي او د هغه په هکله دې معلومات وړاندې کړي.
۲. ښوونکی دې د لاندې برخو په هکله څرګندونه وکړي.
   الف. آیوډین څه ته وایي او په څه شي کې پیدا کېږي؟
   ب. د آیوډین کمښت په وجود کې څه ډول رنځونه پیدا کوي؟
   ج. د آیوډین له کمښت څخه پیدا شوې ناروغي، په څه شی جوړېږي؟
۳. ښوونکی دې متن د املا په توګه په زده کوونکو باندې ولیکي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې متن ولولي او په هغه دې وغږېږي.
۲. زده کوونکي دې دا لاندې جملې د متن په لوستلو سره بشپړې کړي.

الف. د کبانو غوښه د ........................ یوه ښه منبع ده.
ب. د ماشوم په بدن کې د آیوډین کمښت، دی د ........................ سره مخامخ کوي!
ج. آیوډین لرونکې مالګې او............ په بدن کې د آیوډین کمښت له منځه وړي.
د. په لویانو کې د آیوډین په کموالی د........................ غده لوییږي او په جاغور بدلېږي.
هـ. هغه سیمې چې له سمندرونو څخه لرې وي د آیوډین په ................ سره اخته کېږي.

| دماغي کمزورتیا - تایراید - آیوډین - کمښت _ درملونه |
|---|

**ارزونه:**

۱. زده کوونکي په دې و پوهېدل چې آیوډین څه شی او څه ارزښت لري؟
۲. آیوډین لرونکې خواړه یې وپېژندل؟
۳. په دې هم پوه شول چې د آیوډین کمښت ډېرې ناروغۍ منځ ته راوړي؟
۴. متن لوستلی او په خپلو کتابچو کې یې لیکلی شي؟

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د آیوډین لوست خپلو ورو خویندو او ورونو ته ولولي.
زده کوونکي دې د لوست مطلب په لنډ ډول په خپلو کتابچو کې ولیکي.

## اوه ویشتم لوست

# شمېر نوم (عدد)

موخې:

۱. زده کوونکي دې عددونه وپېژني!
۲. په عبارتونو او جملو کې د شمېر نومونو پېژندل.
۳. د متن لوستل او ليکل.

هڅوونکې پوښتنې:

۱. تاسو کله د عدد کلمه اورېدلې ده عدد (شمېر نوم) څه ته وايي؟
۲. په جملو کې راغلي عددونه پېژندلی شئ؟
۳. تاسو په عددونو سره کوم شی شمېرلی شئ؟

**عــــدد**: هغه خپلواکه معنا واله کلمه ده چې د (نومونو) شيانو، او اشخاصو شمېر راښيي.

همدارنګه د هغوی درجه او رتبه هم څرګندولی شي. کوم شی چې د عدد په وسيله شمېرل کېږي معدود بلل کېږي.

د مثال په ډول: دوه سترګې، درې کتابونه، شل زده کوونکي، څلور هېوادونه.

په دغو مثالونو کې (دوه، درې، شل، څلور) عددونه بلل کېږي.

(سترګې، کتابونه، زده کوونکي او هېوادونه) معدود بلل کېږي.

د عدد ډولونه:

۱ - اصلي عددونه: چې يوازې شمېر او کميت ښيي لکه: دوه، درې، شل او نور.

۲ - وصفي يا رتبي عددونه: چې د معدود درجه او رتبه څرګنده کړي.

لکه: لسم لمبر، درېم کس، شلم پوړ، درېمه درجه او نور.....

۳ - کسري عددونه: هغه دي چې د معدود کسر او ماتوالی ښيي لکه: يونيم، دوه نيم، څلورمه برخه، پنځمه برخه او شلمه برخه.

يو په سلو کې    شل په سلو کې    لس په سلو کې    او نور....

نوي لغتونه:

| شمېر – | ګڼه | کميت - | شومره والی |
|---|---|---|---|
| معدود – | شمېرل شوی شی | وصفي- | ستايل شوی |

**ښوونکي ته لارښوونې:**

۱. ښوونکی دې متن ولولي او دهغه پوره څرګندونه دې وکړي.
۲. اعداد او معدود دې د ټولګي په شيانو کې وښيي لکه: دوه قلمونه، لس هلکان.
۳. متن دې د املا په توګه په زده کوونکو وليکي.
۴. د انسان دبدن په غړو کې دې د عدد او معدود مثالونه ووايي لکه: دوه سترګې، يوسر، دوه پښې، پنځه ګوتې، دوه لاسونه، سل ويښته ...

## د زده کوونکو فعاليتونه:

۱. زده کوونکي دې متن ولولي او د عدد او معدود له پاره دې ډول ډول مثالونه وښيي.
۲. زده کوونکي دې په لاندې جملو کې عدد او معدود وښيي.

الف. خوشحال خان يو نامتو شاعر دی چې ۲۵۰ ټوکه کتابونه يې ليکلي دي.
ب. دځمکې درې برخې اوبه او يوه برخه يې وچه ده.
ج. هوښياره مرغۍ په دوولومو کې نښلي.
د. زموږ دځمکو له پيدا وارو څخه څلورمه برخه بزګرانو واخيسته.
هـ. د دولسم ټولګي درسونه په زړه پورې دي.

**ارزونه:**

۱. زده کوونکو عدد او معدود وپېژندل؟
۲. په متن او جملو کې عدد او معدود پېژندلی شي؟
۳. د درس متن لوستلی او ليکلی شي؟

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې پنځه داسې جملې وليکي چې عدد او معدود په کې راشي او بيا دې په خپلو کتابچو کې وليکي! لکه: زه هر سهار دوه پيالې چای څښم.

## اته ویشتم لوست

# مېرمن زینبه

موخې:

۱. د پښتنو د مشهورې شاعرې مېرمن زینبې پېژند ګلوي.
۲. په متن کې د کلمو ، جملو لیکل او لوستل.

هڅوونکې پوښتنې:

۱. تاسو له پښتنو مېرمنو څخه کومه یوه پېژنئ؟
۲. تاسو د مېرمن زینبې نوم اورېدلی دی؟
۳. د مېرمن زینبې د پوهې او دهغې د شعرونو په هکله څه فکر کولی شئ؟

زموږ هېواد افغانستان ډېرې نومیالۍ مېرمنې لري، چې دهغو په پوهې، میړانې او کارنامو تل ویاړو. له دغو نامتو مېرمنو څخه یوه هم د ستر ملي مشر میرویس نیکه لور مېرمن زینبه ده. چې د ۱۱۴۲ هـ ق کلونو په شاوخوا کې یې ژوند کاوه.

مېرمن زینبې د خپل وخت دینې، ادبي کتابونه او همدا رنګه د شاعرانو دیوانونه ولوستل. مېرمن زینبه یوه فاضله مېرمن او له پیاوړو ښځینه شاعرانو څخه شمېرل کېدله چې ډېر ګټور اشعار ور څخه پاتې دي. دې دخپل ژوند په موده کې ډېرو نجونو او ښځو ته دیني زده کړه ورکړې او لیک لوست یې ور زده کړی و.

دا هوښیاره مېرمن د ژوند په چارو ډېره ښه پوهېده تردې چې ورور یې شاه حسین هوتک دسلطنت په چارو کې له دې څخه مشورې اخیستلې.

د دې د شعر یوه نمونه چې دخپل ورور شاه محمود هوتکي په ویر کې یې ویلې او په پټه خزانه کې ذکر شوې دا ده:

| | |
|---|---|
| ږغ شــو چـې ورور تـېر لـه دنـیـا ســـونـا | کــنــدهــار واړه پــه ژړا ســونــا |
| زړه مـې پــه ویـر کـې مـبـتـلا سـونـا | چې شـاه محمود لـه مـا جدا ســونـا |
| دا روڼ جــهــان را تــه تــور تـم دی نــا | زړه د بــېـلـتـون پـه تـېـغ کـرږم دی نـا |
| هــوتــک غــمـجن پـه دې مـاتـم دی نـا | د پـاچـا هـۍ تـاج مـو بـرهم دی نـــا |

نوي لغتونه:

پیاوړی- غښتلی
کږم- زخمي
ویر- غم، ماتم
بېلتون- جدایي
کارنامې- ملي بریاوې
تورتم- توره تیاره

**ښوونکي ته لارښووني:**

۱. ښوونکی دې متن او شعر د کتاب له مخې ولولي او په مطلب دې خبرې وکړي.
۲. متن دې په زده کوونکو باندې د املا په توګه ولیکي.
۳. د مېرمن زینبې په شخصیت او ادبي کارونو باندې دې وغږېږي.

## دزده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې متن په دوه کسیزه توګه ولولي او دهغه په مطلب دې مشوره وکړي.
۲. زده کوونکي دې متن او شعر تکرار اوپه یاد دې زده کړي.
۳. زده کوونکي دې دا جملې بشپړې او بیا دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

الف. مېرمن زینبې د خپل ژوند په موده کې ډېرو ښځو او نجونوته ................
ب. مېرمن زینبې خپل ورور شاه حسین هوتک ته ..................
ج. مېرمن زینبې یوه وېرنه د .........................
د. مېرمن زینبه د ستر ملي مشر.................

**ارزونه:**

۱. زده کوونکو مېرمن زینبه وپېژندله؟
۲. و پوهېدل چې مېرمن زینبه یوه پوهه او هوښیاره ښځه وه؟
۳. د مېرمن زینبې شعر لوستلی او لیکلی شي؟

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د مېرمن زینبې د پېژندګلوی په برخه کې په لنډ ډول د درس مطلب ووایي او بیا دې په خپلوکتابچو کې ولیکي.

نهه ویشتم لوست

# د پنسل اختراع



موخې:

۱. د لومړي ځل له پاره د پنسل د جوړېدو په هکله معلومات ورکول.
۲. دمتن لوستل او لیکل دي.

هڅوونکې پوښتنې:

۱. آیا تاسو پوهېږئ چې دپنسل قلم به څه ډول جوړ شوی وي؟
۲. تاسو فکر کولئ شئ چې دپنسل قلم به لومړی څه ډول و؟

دا څرګنده ده چې دپنسل قلم ټول زده کوونکي پېژني، خو په دې هکله به معلومات لاس ته راوړو چې د پنسل قلم د لومړي ځل له پاره څنګه جوړ شوی دی؟
په پخوا زمانو کې د سکرو په شان یوشی په انګلستان کې کشف شو، چې ګرافیت نومېده.او خلکو د رسم په کښلو کې ترې کار اخیسته، خو ستونزه دا وه، چې دې ګرافیت یا سکرو به لاسونه تورول. نو و پتیل شوه، چې دا ستونزه حل او کار اسان کړي.
همدا و چې ګرافیت یې د دوو لرګیو په منځ کې د تار په واسطه وتاړه. دا کار هم ستونزمن و ځکه چې دا لرګي باید څو ځلي خلاص او تړل شوي وای.
د کلونو په تېرېدو سره خلکو ته نوې نوې مفکورې پیدا شوې. په پایله کې یې دا پرېکړه وکړه:
لرګي چې په طبیعت کې ډېر او ارزانه پیدا کېږي. ګرافیت دې په دې توګه د لرګیو په منځ کې کېښودل شي، چې په آسانۍ سره د پنسل سر تېره او د لیکلو کار ترې واخیستل شي.
په همدې ډول د پنسل قلم چې تاسې کار ترې اخلئ ورو ورو په اوسنۍ بڼه او شکل منځ ته راغی.

نوي لغتونه:

| ګرافيت- | دسکرو په شان مواد | ښوئلي- | ښوواره |
|---|---|---|---|
| ستونزه- | کړاو | بڼه- | شکل |

**ښوونکي ته لارښووني:**

۱. ښوونکی دې متن د کتاب له مخې ولولي او د هغه په مطلب دې خبرې وکړي.
۲. متن دې د املا په توګه په زده کوونکو باندې وليکي.
۳. د پنسل دجوړېدو او منځ ته راتلو په پړاوونو دې وغږېږي.
۴. لاندې کلمې دې پـه تختـه وليکـي او زده کـوونکي دې هغـو تـه جملـې جـوړې او پـه کتابچو کې دې وليکي! (ستونزمن ـ ګرافيت ـ تېره)

## د زده کوونکو فعاليتونه:

۱. زده کوونکي دې متن ولولي او په مطلب دې خبرې وکړي.
۲. زده کوونکي دې په چوکاټ کې اړوندې کلمې په نښه او ديوې کرښې په مرسته دې وښيي.

| نومونه | تېره، ستونزمن |
|---|---|
| صفتونه | تاسې، دغه |
| عدد او معدود | ګرافيت، انګلستان |
| ضميرونه | لومړی ، دوه لرګي |

**ارزونه:**

۱. زده کوونکي په دې و پوهېدل، چې پنسل لومړی ځل په څه ډول منځ ته راغی؟
۲. پوه شول، چې پنسل له څه شی څخه جوړېږي؟
۳. متن لوستلی او ليکلی شي؟

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د پنسل دجوړېدواو منځ ته راتلو مطلب په خپلو کتابچو کې وليکي.

## دیرشم لوست

# قیدونه

موخې:

۱. د قیدونو پېژندنه.

۲. د قیدونو په کارولو باندې پوهېدل.

۳. په متن کې د قیدونو پېژندل، لوستل او لیکل.

هڅوونکې پوښتنې:

۱. آیا تاسو د قید د کلمې په هکله څه اورېدلي دي؟

۲. تاسو دقید کلمې پېژنئ او په هغو باندې پوهېږئ، چې دقید کلمې له څه شي سره راځي؟

> **قید**: هغه کلمه ده، چې دفعل دپېښېدو ځای، وخت او یا دهغه څرنګوالی وښیي. لکه: زه اوس راغلم.ته په جرئت ووایه! هلکان په منډه راغلل. ښوونکي درس ژر ژر ولوست.

دقید ډولونه:

۱. دزمان قید: هغه کلمه ده، چې دیو فعل دپېښېدلو وخت او زمان وښیي.
لکه: ما مې مور پرون ولیده، سپوږمۍ اوس راغله، زه پروسږکال بریالی شوم.

۲. د مکان قید: هغه کلمې، چې دیوه فعل د پېښېدلو ځای وښیي. لکه: احمد دلته دی، زه په ټولګي کې یم، احمد پاس وخوت، نجلۍ دلته وه، چوغکه پورته والوتله!

۳. د حالت قیدونه: هغه کلمې دي، چې دیوه فعل د پېښېدلو حالت وښیي. لکه: احمد په خندا راغی. سپوږمۍ له ژړا شنه شوه. تاکتاب ښه ولوست. زه په منډه راغلم. باران ورو ورو ورېږي.

نوي لغتونه:

پېښېدل- واقع کېدل

### ښوونکي ته لارښوونې:

۱. ښوونکی دې متن ولولي او د قید ډولونه دې په مثالونو کې څرګند کړي.
۲. قیدونه دې په لاندې جملو کې په ښنه او په زده کوونکو دې ولیکي.

الف. زمونږ نیکونو خپله خاوره د خپلو مټو په زور ساتلې ده.
ب. هر سړی له خپلې کورنۍ سره په خوشحالۍ ژوند کوي.
ج. په ښې هوا کې ماشومان ژر ژر وده کوي.
د. ښوونځي ته په منډه ولاړشه! چې ډېر ناوخته دی.

### د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې متن ولولي او د قیدونو په برخه کې دې معلومات وړاندې کړي.
۲. زده کوونکي دې د متن په زده کولو سره دا جملې بشپړې او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي.

الف. قید هغه کلمه ده، چې .....................
ب. د زمان قید هغه دی، چې ..............
د. د حالت قید هغه قیدونه دي، چې............

### ارزونه:

۱. آیا زده کوونکي د قید په معنا او مفهوم و پوهېدل؟
۲. زده کوونکي قیدونه په کلمو او جملو کې پېژندلی شي؟
۳. زده کوونکي قیدونه په ویلو او لیکلو کې کارولی شي؟

### کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د څو ډولو قیدونو له پاره پنځه پنځه مثالونه په خپلو کتابچو کې ولیکي. او د قید ډولونه دې په کې وښیي.

## یو د پرشم لوست

# زلزله



**موخې:**

۱. د زلزلې د پېښېدو په هکله پوهېدل.
۲. د زلزلې د سختوالي د اندازه کولو د آلې سره بلدتیا او د هغې پېژندنه.
۳. د متن سم لوستل او سم لیکل.

**هڅوونکې پوښتنې:**

۱. تاسو څامخا کوم وخت د زلزلې په ټکانونو پوهېدلي یاست او دزلزلې له کلمې سره آشنا یاستئ؟
۲. تاسو پوهېږئ، چې ولې زلزله پېښېږي؟
۳. د زلزلې د پېښېدو په وخت کې ولې ډارېږو؟

کله کله به تاسې هم د ځمکې په ښورېدو پوه شوی یاست. یا به مو د ځمکې د ټکانونو په نتیجه کې ډېرې خرابۍ لیدلې وي. د ځمکې د غو ښورېدو او ټکانونو ته زلزله وايي.

زلزله د خدای (جل جلاله) لوی آفت دی او د ځمکې په سر له ډېرو ناوړو پېښو څخه ګڼل کېږي، چې د زرګونو انسانانو او نورو ژوندیو موجوداتو د مرګ سبب ګرځي. ښارونه، کلي، باغونه او هر څه ویجاړوي. راځئ په دې خان پوه کړو چې زلزله څنګه منځ ته راځي؟ ځمکې پېژندونکي پوهان او څېړونکي تر ډېرو علمي څېړنو وروسته دې نتیجې ته رسېدلي دي، د خدای (جل جلاله) په امر زلزله د ځمکې د لاندېنۍ برخې د ډبرو د حرکت او ښویېدو څخه منځ ته راځي. کله هم دا ډبرې له یوې بلې سره ټکرې خوري. یا هم له یوه فشار سره پورته خواوو ته زور کوي. هغه ځای چې دا پېښې په کې منځ ته راځي د زلزلې مرکز بلل کېږي. د زلزلې د ټکانونو زور او شدت په مرکز کې تر نورو ټولو ځایونو زیات وي.



ځمکه پېژندونکي او دجغرافیې پوهان د زلزلې زور او سختوالی د زلزله سنج په واسطه چې (رېکتر) نومېږي، اندازه کوي.

نوي لغتونه:

آفت- مصیبت ویجاړ- وران پېښه- واقعه

رېکتر- هغه آله چې د زلزلې د زور او شدت اندازه پرې معلومېږي.

### ښوونکي ته لارښوونې:

۱. ښوونکی دې متن ولولي او په مطلب دې خبرې وکړي.
۲. د زلزلې په عواملودې معلومات ورکړي.
۳. متن دې د املاء په توګه په زده کوونکو ولیکي.
۴. د زلزلو دمرکزونو په برخه کې دې معلومات وړاندې کړي او دځینو مشهورو زلزله لرونکو ځایونو څخه دې یاد ونه وکړي لکه: جاپان ، اندونیزیا ، امریکا ، چین او هندوستان.

### د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې متن ولولي او په مطلب دې وغږېږي.
۲. لاندې پوښتنو ته دې ځوابونه ووايي او بیا دې په کتابچو کې ولیکي.

الف. زلزله څه شي ته وايي؟

ب. هغه ځای چې زلزله په کې پېښېږي او د زلزلې زور او سختوالی تر نورو ځایونو په هغه کې زیات وي څه نومېږي؟

ج. پوهان د زلزلې زور او شدت په څه شي اندازه کوي ؟

زده کوونکي دې د لاندې لغتونو معنا د چوکاټ له کلمو څخه پیدا او د هغو په مخ کې دې په خپلو کتابچو کې ولیکي لکه:

الف. پېښه ج. موجونه

ب. څېړونکي د. رېکتر

هـ. آفت

څپې ، مصیبت، زلزله سنج ، واقعه
هغه پوهان چې علمي څېړنې کوي.

### ارزونه:

۱. آیا زده کوونکي د زلزلې په مطلب و پوهېدل؟
۲. زده کوونکي د زلزلو د پېښېدو په عواملو پوه شول؟
۳. زده کوونکي متن لوستلی او لیکلی شي؟

### کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې دزلزلې د پېښو او ورانیو په هکله څوکرښې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

### دوه دېرشم لوست

# رحمان بابا



**موخې:**

۱. د رحمان بابا د شخصيت پېژندنه.
۲. د رحمان بابا له شعر او شاعرۍ سره بلدتيا.
۳. د متن لوستل او ليکل.

**هڅوونکې پوښتنې:**

۱. آيا تاسو د رحمان بابا نوم اورېدلی او هغه پېژنئ؟
۲. له رحمان بابا څخه به اشعار يا کوم کتاب را پاتې وي؟
۳. څه فکر کوئ، چې د رحمان بابا اشعار به کوم ښه والی ولري؟

عبدالرحمان بابا د پښتو ژبې نوميالی اديب او صوفي شاعر و، چې د پلار نوم يې عبدالستار او په ۱۰۴۲ هـ ق کال د پېښور په بهادر کلي کې زېږېدلی دی.

د رحمان بابا د لوړ شخصيت او پېژندنې له پاره دومره بس دی، چې ټول خلک ورته بابا وايي. نومونړی د اشعارو يو خوږ ديوان لري، چې لوړ ارزښتمن مضامين يې په ساده او ښکلو الفاظو کې بيان کړي دي. د ده اشعارو ته يې هغه خوند ورکړی، چې د نورو پښتنو شاعرانو په اشعارو کې ډېر لږ ليدل کېږي.

دا نامتو شاعر او اديب د ځينو سندونو له مخې په ۱۱۲۸ هـ ق کال وفات شوی او د پېښور د هزار خانې په هديره کې ښخ دی. دده له کلام څخه يوه بېلګه:

| | |
|---|---|
| کړ ګلو کړه چې سيمه دې ګلزار شي | اغزي مه کره چې پښو کې به دې خار شي |
| ته چې بل په غشو ولې هسې پوه شه | چې همدا غشی به ستا په لور ګوزار شي |
| کوهی مه کينه د بل سړي په لار کې | چېرې ستا به د کوهي په غاړه لار شي |
| نن چې صبحه ده روښانه لارصحيح کړه | ناګهانه به دا صبحه شب تار شي |
| که بل بد کاندي ته ښه ورسره وکړه | هر يو نخل چې مېوه لري سنګسار شي |

«رحمان بابا»

نوي لغتونه:

| | | | |
|---|---|---|---|
| نوميالی- | مشهوراود نوم خاوند | ښخ- | خاورو ته سپارل شوی |
| اديب- | شاعر او ليکوال | مه کينه- | يعني کيندل مه کوه |
| کوهی- | څاه | بېلګه- | نمونه |

**ښوونکي ته لارښوونې:**

۱. ښوونکی د ې متن او شعر ولولي او هغه دې پوره معنا کړي.
۲. متن دې په زده کوونکود املا په توګه ولیکي!
۳. په شعر کې دې هم وزنه کلمې زده کوونکو ته وښيي.
لکه: ( خار، لار، تار او نور. )

ښوونکی دې د رحمان بابا په لاندېنيو نومونو باندې پوره رڼا واچوي او زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې وليکي.
( عبدالرحمان بابا - رحمان بابا - عبدالرحمان مومند ، صوفي عبدالرحمان او د پېښور(بلبل.)

## د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې متن ولولي او شعر دې معنا کړي.
۲. شعر دې په ساده نثر واړوي.
۳. دا نيمګړې جملې دې د متن په لوستلو بشپړې او بيا دې په کتابچو کې وليکي.

الف. د رحمان بابا لوړ شخصيت له دې څخه معلومېږي چې ټول خلک ........................
ب. رحمان بابا د پښتو ژبې يو..................................
ج. ساده اوښکلو الفاظو د رحمان بابا اشعارو ته هغه خوند ورکړی چې د .................
د. له رحمان بابا څخه د اشعارو يو ........................
ه. نن چې صبحه ده روښانه لار........................
د. زده کوونکي دې متن له شعر سره پوره تکرار او بيا دې په ياد زده کړي.

**ارزونه:**

۱. آيا زده کوونکي د رحمان بابا شعر معنا کولی شي؟
۲. زده کوونکي دا بيتونه په نثر اړولی شي؟
۳. آيا زده کوونکي د رحمان بابا دا شعر له ياده ويلی شي؟

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د رحمان بابا د پېژندنې له پاره متن ولولي او د هغه مطلب دې په ياد زده کړي.

دري دېرشم لوست

# فعل او د هغه ډولونه

موخې:
۱. د فعل په معنا او مفهوم باندې پوهېدل او په جملو کې د هغو پېژندل.
۲. د فعلونو په ډولونو باندې پوهېدل.
۳. په لیکنو کې د فعلونو سم کار ول او سمه لوستنه.

هڅوونکې پوښتنې:
۱. آیا تاسو کوم وخت د فعل کلمه اورېدلې ده؟
۲. تاسو په خپلو خبرو اترو کې له فعلونو څخه کار اخلئ؟
۳. څه فکر کوئ، چې فعلونه په وینا کې څه ارزښت لري؟

**فعل**: هغه کلمه ده چې له درې ګونو زمانو څخه په یوه زمانه کې د یوه کار کول او پېښېدل را وښیي.
فعل د وینا ډېره ارزښتمنه برخه ده بې له هغه څخه د جملې معنا نه بشپړېږي.
فعل کله هم په یوازې توګه په خپله د یوې جملې مفهوم افاده کوي.
لکه: ځم، ګوري، اخلو، اغوندو اونور.
فعلونه د زمانې له مخې په درې ډوله دي:

### د حال زماني فعل:
هغه کلمه ده، چې د یوه کار کول په حال یا جاري زمانه کې څرګند کړي.
لکه: زه کتاب لولم، دی ډوډۍ خوري، هغه تاګوري، احمد درس وایي، مور خاندو، هغه راغی.

### د تېرې زماني فعلونه:
هغه فعلونه دي چې د یوه کار کول په تېره زمانه کې وښیي.
لکه: تا هلک وواهه، ما ډوډۍ خوړلې ده، هغه درس لوستلی و، احمد پرون تللی و، هلکانو غوزان وخوړل، ما درس لوستنه چې دی راغی، مور ډوډۍ پخه کړې وه.

### دراتلونکې زماني فعلونه:
هغه فعلونه دي، چې کار کول په راتلونکې زمانې کې را ښکاره کړي.
لکه: زه به کامیاب شم. ته به کورته لاړ شې. احمد به خط ولیکي. سږکال به سوکالي وي. که باران ودریده ته به راشې!

نوي لغتونه:

| | | |
|---|---|---|
| بنسټ – تهداب | | ماضي- تېرمهال، تېره زمانه |
| مستقبل- راتلونکې، آینده | | سوکالي- آسوده ګي |

**ښوونکي ته لارښوونې:**

۱. ښوونکی دې متن ولولي او د فعلونو ډولونه دې په مثالونو کې څرګند کړي.
۲. د دغې هرې برخې دې بېله بېله څرګندونه وکړي.
الف. د حال فعلونه:
ب. د ماضی یا تېر مهال فعلونه:
ج. د مستقبل یا راتلونکې زمانې فعلونه:

## د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې متن ولولي او د درس په مطلب دې وغږېږي.
۲. په لاندې جملو کې دې فعلونه او دهغو ډولونه وښيي.
الف. د افغانستان پخوانی نوم آریانا و.
ب. افغانان روڼ تاریخ لري.
ج. موږ به په زیار خپله خاوره ودانه کړو.
د. ټول افغانان د احمد شاه بابا په کارنامو ویاړي.
هـ. بې علمه ژوندون ګران دی.

## ارزونه:

۱. آیا زده کوونکي د فعلونو په معنا او مفهوم وپوهېدل؟
۲. د فعلونو ډولونه یې هم وپېژندل؟
۳. فعلونه په سمه توګه کارولی شي؟
۴. متن لوستلی او لیکلی شي؟

## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د نازوانا په رباعۍ کې فعلونه په نښه او په کتابچو کې دې ولیکي.

سحر ګه وه د نرګس لېمه لانده | څاڅکي څاڅکي یې له سترګو څڅېده
ما وېل: څه دې ښکلې ګله ولې ژاړې | ده وېل: ژوند مې دی یوه خوله خندېده

### څلور د پرشم لوست

# د بشر لوی مخترع

موخې:

۱. د بشر له سترو خدمتګارانو څخه د اديسن پېژندنه.
۲. د اديسن د خدمتونو په ارزښت باندې پوهېدل.
۳. د متن سم لوستل او سم ليکل.

هڅوونکې پوښتنې:

۱. تاسو د بشر د سترو خدمتګارانو له پېژندنې سره مينه لرئ؟
۲. ستاسو په نظر بشر ته لوی خدمت کوونکي د قدر وړ دي؟
۳. آيا تاسو د برېښنا منځ ته راوړل د بشريت له پاره ستر خدمت بولئ؟
۴. تاسې پوهېږئ چې دا لوی خدمت کوونکي به څوک وي؟

په (۱۸۴۷) ميلادي کال په امريکا کې يو ماشوم وزېږېد. دی لاوه کلن نه و چې په ښوونځي کې شامل شو. ده د ښوونځي د درس له زده کړې څخه سربېره د خپلو ځمکو په کرنه کې هم کار کاوه.

څه موده يې ورځپاڼې چلولې. په پنځلس کلنۍ کې يې د چاپ ماشين واخيست. خپله ورځپاڼه يې پرې چاپوله. په شپاړس کلنۍ کې يې کور او کلی پرېښود. نيويارک ته لاړ. د پنځو کلونو په موده کې يې يو سلو دوه ويشت اختراعګانې وکړې. ګرامافون يې جوړ کړ، چې لومړی ځل يې د ويونکي ماشين غږ په نړۍ کې خپور کړ. څه موده وروسته له برقي قوې څخه د روښنايي په فکر کې شو، چې دا کار ډېر ورته ناشونی ښکارېده، خو دی بې هيلې نشو. خپل کارته يې په کلک عزم ملا وتړله، ترڅو چې په (۱۸۷۹) ميلادي کال کې د اکتوبر په ۲۱ ورځ اديسن په دې بريالی شو، چې د برېښنا بهير په ګروپ کې د روښنايۍ په توګه راولي.

دغه ستر خدمت کوونکي په (۱۹۳۱) ميلادي کال کې له دې فاني نړۍ څخه سترګې پټې کړې.

نوي لغتونه:

| بريالی- | کامياب | بې هيلې- | نا اميد |
|---|---|---|---|
| بهير- | جريان | روښنايي- | رڼايي |
| ناشونی- | نه کېدونکی | | |

**ښوونکي ته لارښوونې:**

۱. ښوونکی دې متن ولولي او د اډيسن د لوی خدمت په ارزښت دې خبرې وکړي.

۲. متن دې د املا په توګه ووايي او زده کوونکي دې په کتابچو کې وليکي.

۳. لاندې بيتونه دې په تخته وليکي معنا دې کړي او په هغه کې دې نومونه په نښه کړي.

دمثال په ډول: بصيرت او علم (د معنا نومونه دي)

بصيرت او علم نشته په کتاب کې — که څه نه وي د مغزو په پېچ وتاب کې

پوهه تولـه راوتلې له مغزو ده — هسې نه چې په دا ډېرو کتابو ده

(الفت)

د زده کوونکو فعاليتونه:

۱. زده کوونکي دې متن ولولي او د اډيسن په هکله دې خبرې وکړي.

۲. په لاندې جملو کې دې سمې جملې په (ص) سره په نښه کړي.

الف. اديسن د امريکا خلکو ته خدمت وکړ.

ب. اديسن يوازې ګرامافون اختراع کړ.

ج. اديسن له برقي انرژۍ څخه روښنايي منځ ته راوړه.

د. د اديسن کار او تجربو نتيجه ورنه کړه.

هـ. د ۱۸۷۹ ميلادي کال د اکتوبر ۲۱ ورځ د ټولې دنيا له پاره يوه مهمه ورځ وه.

دغه ستر خدمت کوونکې په ۱۹۳۱ ميلادي کال کې له دې فانۍ نړۍ سترګې پټې کړې.

ارزونه:

۱. زده کوونکي په دې و پوهېدل چې اديسن د برق په اختراع کولو سره بشر ته لوی خدمت وکړ؟

۲. په دې پوه شول چې د اديسن نوم د سترو خدمتونو په کولو سره تل ژوندی پاتې دی؟

۳. متن لوستلی او ليکلی شي؟

کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د اډيسن په هکله د خپلې کورنۍ غړو په تېره خويندو او ورونو ته کېسې وکړي او دلوست مطلب دې په لنډه توګه په خپلو کتابچو کې وليکي اوپه ياد دې زده کړي.

## پنځه د یرشم لوست

# بېټ نیکه

موخې:

۱. د یوه مشهور نیکه او پیاوړي شاعر په توګه د بېټ نیکه پېژندنه:

۲. د متن سم لوستل او سم لیکل دي.

هڅوونکې پوښتنې:

۱. آیا تاسو له پخوانیو شاعرانو او نیکونو څخه د چا نوم اورېدلی دی؟
۲. پښتو ژبې په پخوا زمانو کې هم مشهور او پیاوړي شاعران درلودل؟
۳. تاسو د بېټ نیکه نوم اورېدلی، د هغه د مناجاتو اوشاعرۍ په هکله څه پوهېږئ؟

بېټ نیکه بېټني، او بټني د پښتنو له مشهورو نیکونو او لرغونو شاعرانو څخه و. چې د (۳۰۰ او ۴۰۰ هـ) کلونو شاوخوايې سلیمان غره په لمنو کې ژوند کاوه. تر ټولو پخوانی کتاب چې د دې نیکه نوم او اشعار په کې راغلي دي. دسلیمان ماکو د تذکرةُ الاولیا کتاب دی،چې په ۶۱۲هـ . ق کال کې لیکل شوی دی.

د بېټ نیکه له اشعارو څخه څرګندېږي، چې ده په خپلو اشعارو کې د نورو ژبو کلمې نه دي راوړي. یوازې د پښتو سوچه کلمې یې غوره کړې دي او د کلمو کارول یې په داسې توګه شوي،چې اشعار یې ډېر سپېڅلي، ساده او روان دي.

### د بېټ نیکه مناجات

| | |
|---|---|
| لویه خدایه لویه خدایه ! | ستا په مینه په هر ځایه |
| غر ولاړ دی درناوي کې | ټوله ژوي په زاري کې |
| دلته دي دغرو لمنې | زموږ کیږدۍ دي په کې پلنې |

دا وګړي ډېر کړې خدایه!
لویه خدایه لویه خدایه!

| | |
|---|---|
| هسک اوځمکه نغښته ستاده | د مرو وده له تا ده |
| دا پالنه ستا ده خدایه! | لویه خدایه لویه خدایه |

نوي لغتونه:

درناوی- درنښت      ژوي- ښاروي حيوانات      وده- لویېدنه
سوچه- سپېڅلي      نغښتي- تاوکړي، پېچلي      وګړي- خلک

**ښوونکي ته لارښوونې:**

۱. ښوونکي دې متن ولولي او دغه په هکله دې خبرې وکړي.
۲. متن او شعر دې په زده کوونکو باندې د املا په توګه وليکي.
۳. په متن کې راغلي صفتونه دې په نښه او زده کوونکي دې په کتابچو کې وليکي.
لکه: (لويه، مشهور، سوچه، پخوانی، تاريخي، سپين، ساده، روان) اونور...

## د زده کوونکو فعاليتونه:

۱. زده کوونکي دې متن ولولي او شعر دې په ياد زده کړي.
۲. دا لاندې جملې دې د درس په پوهېدو سره بشپړې او په کتابچو کې وليکي.

الف. بېټ نيکه له مشهورو نيکونو څخه و چې په .......... او ......... هـ. ق کلونو دسليمان د غرونو په لمنو کې اوسيده!

ب. تر ټولو پخوانی کتاب چې د بېټ نيکه نوم او اشعاريې راوړي د ....... کتاب دی. چې .........ليکلی دی.

زده کوونکي دې په دې لاندې جملو کې صفتونه په نښه او په خپلو کتابچو کې وليکي!

د بېټ نيکه د مناجاتو له مخې معلومېږي، چې د ده اشعار ډېر سپېڅلي، ساده او روان دي. د نورو ژبو کلمې يې هم په کې نه دي را وړي. سوچه د پښتو ژبې کلمې يې کارولې دي.

**ارزونه:**

۱. زده کوونکي متن لوستلی او د املا په توګه يې ليکلی شي؟
۲. زده کوونکو بېټ نيکه وپېژانده او له شاعرۍ سره يې آشنا شول؟
۳. زده کوونکي د بېټ نيکه مناجات له ياده ويلی شي؟

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې دا کلمې لومړی معنا او بيا دې په جملو کې وکاروي او په خپلو کتابچو کې دې وليکي.

لکه: درناوی، ژوی، بورجل، مېشته، وده

شپږ د پرشم لوست

# د فعل ريښه

موخې:

۱. د فعلونو دريښو پېژندل.
۲. په فعلونو کې دريښو ارزښت.
۳. په ليکلو او لوستلو کې د فعلونو سم کارول.

هڅوونکې پوښتنې:

۱. تاسو څه فکر کوئ فعلونه هم ريښې لري؟
۲. ستاسو په نظر ريښې د فعلونو په جوړښت کې مهمې دي؟

## د فعلونو ريښې:

ريښه د فعل اصل او بنسټ دی او د فعل هغې برخې ته ويل کېږي، چې تاړي يا وندونه ور پورې ونښلي او نورې کلمې ترې جوړې کړي.

لکه: د (خوړ) کلمه د يوې ريښې په شکل په نورو مثالونو کې وګورئ:

خوړلی، وخوړ، خوړلی و، خوړلې ده، خوړونکې، خوړل شوی، وبه خوړلی شي خوړلی به وي.

لکه: څنګه چې ريښه د فعل اصل او بنسټ جوړوي. په نومونو کې هم ريښه اصل دی او له تاړو سره نوې کلمې جوړولی شي.

د مثال په توګه د کار کلمه په نورو مثالونو کې وګورئ: کاريګر، ناکاره، بېکار، بېکاره، کارکوونکې، هم کار، او نور....

همدارنګه د زړه کلمه هم په نورو مثالونو کې ليدلی شئ: زړ ور، بې زړه، نازړه، زړن، زړه سوی، له زړه اونور...

نوي لغتونه:

| | | | |
|---|---|---|---|
| بنسټ- | تهداب | زړن- | زړور |
| نازړه- | ډارن- بې هوډه | تاړي - | وندونه |
| مختاړي - | پېشوندونه | روستاړي – | پسوندونه |

### ښوونکي ته لارښووني:

۱. ښوونکی دې متن ولولي او په مطلب دې خبرې وکړي.
۲. ښوونکی دې متن د املاء په توګه په زده کوونکو باندې وليکي.
۳. ښوونکی دې په دا لاندې کلمو کې ريښه وښيي او په زده کوونکو دې وليکي.

الف. (ليد): ليدنه، ليدونکی ، ليدل، وليد ، ليدلی، وليدل.

ب. (کوت): وکوت، کتلی، کتل شوی، کاته ، کتل.........

ج. (فکر): بې فکره، بافکره، هم فکره، بې فکري........

د. (لاس): لاسي، بی لاسه، برلاسه، په لاس ........

### د زده کوونکو فعاليتونه:

۱. زده کوونکي دې متن ولولي او په مطلب دې خبرې وکړي.
۲. زده کوونکي دې ريښه تعريف، په مثالونو کې څرګنده او په کتابچو کې وليکي.
۳. زده کوونکي دې په لاندېنيو کلمو کې ريښه په نښه کړي.

الف. (پوه): پوهنه، پوهول، پوهنتون، پوهان، پوهنوال، پوهيالی، ناپوه.

ب. (مخ): مخونه، مخکې، مختاړي، مخور، بې مخي، بې مخه.

ج. (سر): سرور، بې سره، له سره، سردار، سره.

### ارزونه:

۱. آيا زده کوونکي د ريښو په معنا او مطلب باندې و پوهېدل؟
۲. زده کوونکي کولی شي چې په کلمو کې ريښه وپېژني؟

### کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د متن لنډيز په کتابچو کې وليکي او هغه دې له مثالونو سره په ياد زده کړي.

اووه د پرشم لوست

# کوچنیان



موخې:

۱. په کینې او رخې باندې د زده کوونکو پوهېدل.
۲. زده کوونکي وپوهېږي چې دښمني او کینه ښه کار نه دی.
۳. دمتن لوستل او لیکل.

هڅوونکې پوښتنې:

۱. آیا تاسو د کینې او حسد په مفهوم باندې پوهېږئ؟
۲. کوم وخت داسې پېښ شوي چې له چاسره مو کینه او رخه پیدا شوې وي؟
۳. ستاسو په فکر کینه او رخه څه ډول عمل دی؟

اروابناد ګل پاچا ( الفت ) په خپل مشهور کتاب ((غوره نثرونه)) کې لیکلي دي:
(( ..... زه په ماشومانو کې ځینې داسې لوی خویونه او ستر صفتونه وینم، چې هغه په لویانو کې نشته. هغه کسان چې لویې لرې، ځانونه ورته لوی او زورور ښکاري. دخپلې کینې او بغض په وړاندې ډېر کمزوري دي. زه او ته که هر څومره لوی شو، قوت ومومو، په خپلو غلیمانو رحم نه شو کولی. په زورورو باندې قهر او غضب ډېر زورور دي. مګر ماشومان دغه راز نه دي. د دوی په زړونو کې که عناد او کینه پیدا شي، ډېر ژر یې له منځه وړی شي. یوه شېبه وروسته له هغه چا سره مینه کوي، چې مخکې یې ورسره منګولې لګولې.
دا کار لویان نه شي کولی. لوی خلک د خپل قهر او غضب په وړاندې ډېر واړه او کمزوري دي.
دا زور او قوت د کوچنیانو په برخه رسیدلی دی، چې د کینې او عناد اور مړ کړي او دا جهنم په ګلزار بدل کړي.

نوي لغتونه:

| | | | |
|---|---|---|---|
| ارواښاد- | مړ، ښبنل شوی | عناد- | کينه |
| غوره- | په زړه پوري | ګلزار- | دګلو سېمي |
| حسد- | رخه | بُغض- | کينه |

ښوونکي ته لارښوونې:

۱. ښوونکی دې متن ولولي او په مطلب دې خبرې وکړي.
۲. د کينې، رخې او د ښمنۍ په کلمو دې پوره څرګندونې وکړي.
۳. متن دې د املاء په توګه په زده کوونکو وليکي.
۴. زده کوونکي دې په څلورو ډلو وويشي او دوی ته دې دا سې سپارښتنې وکړي:

لومړۍ ډله : دمتن يوه يوه جمله دې ولولي او په تخته دې وليکي.
دوهمه ډله: په متن کې دې نومونه په نښه کړي، لکه: ګل پاچا اُلفت (خاص نوم)
درېمه ډله: په متن کې دې راغلي (صفتونه) وښيي! لکه: ستر (اصلي صفت)
څلورمه ډله: په متن کې دې مترادفې او متضادې کلمې څرګندې کړي.
مترادفې کلمې لکه: رخه او حسد _ عناد او کينه
متضادې کلمې، لکه: لويان او واړه _ زورور او کم زوری

د زده کوونکو فعاليتونه:

۱. زده کوونکي دې متن ولولي او هغه دې په لنډ ډول ووايي.
۲. زده کوونکي دې لاندې کلمې په مناسبو جملو کې راوړي.

| | | |
|---|---|---|
| الف. لويان | د. عناد | ز. قوت |
| ب. بغض | هـ. کمزوری | ح. ګلزار |
| ج. زورور | و. مينه | |

ارزونه:

۱. زده کوونکي د کينې اورخې په معنا او مطلب و پوهېدل؟
۲. آيا زده کوونکي د کېنې او دښمنۍ په هکله يوه مقاله ليکلی شي؟
۳. زده کوونکي متن لوستلی او خبرې پرې کولی شي؟

کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې يوه لنډه مقاله د کينې او رخې په هکله په خپلو کتابچو کې وليکي او بيا دې سباته خپلو ټولګيوالو ته ولولي.

اته دېرشم لوست

# دغوږونو ساتنه



موخې:

۱. دغوږونو په ارزښت او کتو باندې پوهېدل.
۲. زده کوونکي پوهېږي چې دغوږونو پاک ساتل دروغتیا له پاره ډېره ضروري او حتمي خبره ده.
۳. دمتن لوستل او لیکل.

هڅوونکې پوښتنې:

۱. ستاسو په فکر دغوږونو سلامتي او روغتیا په ژوند کې څه اغېزه لري؟
۲. موږ د خپلو غوږونو دسلامتیٰ او ساتنې له پاره باید څه وکړو؟

غوږونه زموږ د بدن اساسي برخه ده، چې دهغو له لارې ډول ډول آوازونه اورو، غوږ درې برخې لري:

۱. د غوږ باندینۍ برخه: هغه برخه ده، چې موږ یې له بهر څخه ګورو او د غږ څپې لومړی له دغې برخې سره لګیږي. بیا دغوږ د ننه نلۍ ته چې ( د اوریدو دنلۍ په نامه یادیږي ) داخلیږي. د دې نلۍ د پاسه واړه ویښتان دي، چې مکروبونه، دوړې او خځلې د غوږ د ننه داخلېدو ته نه پرېږدي. د اورېدو په نلۍ کې الله (جل جلاله) یو خاص ډول غُدې پیدا کړې دي، چې سرېښناکه ماده لري. دا غُدې د غوږ په پورتنۍ برخه کې هم لږ غوندې سرېښناکه ماده لري، چې غوږ له زخمي کیدو څخه ساتي. د اورېدو د نلۍ په دننه برخه کې یوه نازکه پرده ده، چې د غوږ پرده ورته ویل کېږي. کله چې دغږ څپې له دغې پردې سره ولګیږي، نو په کې اهتزاز (رپا) پیدا کېږي. دغه پرده له ډېر تېز اودرانده آوازاو چاودنې څخه شلېدای هم شي.

۲. د غوږ منځنۍ برخه: دا برخه د یوې نلۍ په واسطه له ستوني سره یو ځای شوې ده. د والګي ( ریزش ) په وخت کې چې د پزې او ستوني د ننه خیرى یا نور شیان را ټول شي، نو د غوږ په دغه نلۍ کې سوی او درد پیدا کېږي، او غوږ په لنډ مهاله توګه بندېږي.

۳. د غوږ دننه برخه: دا برخه بیضوي ډوله شکل لري. په هغو کې یو غړی دی، چې انډول ساتي. د دغه غړي د ننه درې نلونه دي چې د یوه خاص ډول مایع څخه ډک دي.

کله چې د غږ څپې زموږ له غوږونو سره ولګېږي، نو د غوږ په پرده کې رپا پیدا شي. دا رپا د غوږ له منځنیو برخو څخه تېرېږي او مغزوته رسېږي او په دې ډول موږ غږ اورو.

**ښوونکي ته لارښوونې:**

۱. ښوونکی دې متن ولولي او د غوږونو په ارزښت دې خبرې وکړي.
۲. د غوږونو ارزښتمنې دندې او په سلامتیـ کې دې د هغو رول وښيي.
۳. زده کوونکو ته دې په ډله ییزه توګه لارښوونه وکړي چې د پوښتنې ځواب ووايي او بیا دې له هرې ډلې څخه یو تن خپله لیکل شوې پاڼه ولولي.
۴. د غوږونو د پاک ساتلو په هکله دې زده کوونکو ته معلومات ورکړي.

**د زده کوونکو فعالیتونه:**

۱. زده کوونکي دې متن ولولي او په لنډ ډول دې پرې خبرې وکړي.
۲. لاندې پوښتنو ته ځوابونه ورکړئ او د پاراګراف په شکل یې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

الف. موږ غږ د څه شي په واسطه اورو؟
ب. غوږ څو برخې لري؟
ج. موږ غږ څنګه اورېدلی شو؟

**ارزونه:**

۱. آیا زده کوونکي د غوږونو په ارزښت او ساتنې و پوهېدل؟
۲. زده کوونکي پوه شول چې د غوږونو ارزښتمنه دنده څه شی ده؟
۳. زده کوونکي متن لیکلی او لوستلی شي؟

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د غوږ روغتیا ساتلو او ارزښت په هکله یوه لنډه مقاله په خپلو کتابچو کې ولیکي.

## نهه د يرشم لوست

# ملي يووالی

موخې:

۱. زده کوونکي دې د يووالي په معنا او مفهوم باندې وپوهېږي.
۲. د يو والي په ارزښت باندې پوهېدل.
۳. د متن لوستل او ليکل.

هڅوونکې پوښتنې:

۱. آيا تاسو د يووالي د کلمې په معنا او مفهوم پوهېږئ؟
۲. تاسې پوهېږئ چې يووالی هېواد ته څه ګټې لري؟
۳. د تاسو په فکر موږ بايد د يووالي له پاره څه وکړو؟

يووالی

لــکه بـــاغ يــو مـمـلـکـت وګڼـــه وروره
په کې هــر قــسم ګـلـــونـه بـوټـــي ګــــوره!

ونــې ډېـــرې خــو بــــاغ يــو دی کــه پــوهېــږې
کـــه کـــوې بـــل رنـګـه فـکـــر ډېـــر غـولـېـــږې

د وه سـکــه ورونـه لـــري بـېـل بـېـل نـومـونه
بـېل رنـګـونـه بـېل غـــږونـه بـېـل خـويـونـه

مــــګـــر دواړه او سېدونـکـــي ديــو کــور دي
ديـوې سترګـــې پـه کـــور کـــې سپـيـن او تـــور دي

(اُلفت)

نوي لغتونه:

بېل- جلا
وګڼه- وشمېره، ومنه، قبول کړه

### ښوونکي ته لارښوونې:

۱. ښوونکی دې شعر ولولي او معنا دې کړي.

۲. د شعر په مطلب دې خبرې وکړي.

۳. د يووالي په ارزښت دې وغږېږي.

۴. شعر دې د املاء په توګه په زده کوونکو وليکي.

### د زده کوونکو فعاليتونه:

۱. زده کوونکي دې متن ولولي او دهغه په مطلب دې خبرې وکړي.

۲. لوستل شوی شعر دې په نثر واړوي او په کتابچو کې دې وليکي.

۳. لاندېنۍ کلمې دې په جملو کې وکاروي او په خپلو کتابچو کې دې وليکي:

الف. وګړنه
ب. سکه
ج. بېل
د. اوسيدونکي
هـ. وروڼه

### ارزونه:

۱. آيا زده کوونکي ديووالي په معنا او مفهوم وپوهېدل؟
۲. زده کوونکي ديووالي په ارزښت وپوهېدل؟
۳. زده کوونکي متن لوستلی او ليکلی شي؟

### کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د يووالي په هکله يوه مقاله وليکي.

## څلوېښتم لوست

# دتېرمهال فعلونه

موخې:

۱. د تېر مهال د فعلونو پېژندل.
۲. دتېرمهال دفعلونو د ډولونو پېژندل.
۳. په لوستلو او ليکلو کې د تېر مهال د فعلونو سم کارول.

هڅوونکې پوښتنې:

۱. آيا تاسو په فعلونو کې د تېرمهال فعلونه پېژنئ؟
۲. دتېرمهال فعلونه له نورو فعلونو سره څه توپير لري؟
۳. د تېرمهال د فعلونو د ډولونو په هکله څه ويلی شئ؟

## د تېرمهال يا ماضي فعلونه

هغه فعلونه چې په تېره زما نه کې دکار پېښېدل ونښيي، لکه: ما ډوډۍ خوړلې وه، تا خط ليکلی و.

د تېرمهال فعلونه دا لاندې ډولونه لري:

مطلقه ماضي: چې يو کار مطلقاً په تېره زمانه کې راوښيي. لکه: تاولېد. ما ناک وخوړ. هلک يې پرون وواهه. خط يې وليکه. دوی ولمبل. امتحان يې واخيست.

استمراري تېره زمانه:

چې د فعل دوام يا بهير اوس مهال پورې وښيي، لکه: تاليده، هلک يې واهه، خط يې ليکه، دوی لمبل، امتحان يې اخيسته، او نور.

نږدې تېره زمانه:

هغه چې اوس مهال ته نږدې وي لکه: ماليدلی دی، پيشويې وهلې ده، خط يې ليکلی دی، دوی لمبلي دي، امتحان يې اخيستی دی، منه يې خوړلې ده.

لرې ماضي:

چې له اوس مهال څخه لرې وي، لکه: ماليدلی و. هلک يې وهلی و. مقاله يې ليکلې وه. دوی لمبلي وو. آزموينه يې اخيستلې وه. منه يې خوړلې وه.

## احتمالي يا شکي ماضي:

**چې یو کار په تېره زمانه کې له شک او تردید سره وښيي. لکه: تا به لیدلی وي. هلک به یې وهلی وي. ډوډۍ به یې خوړلې وي. مورې به ویلي وي.**

نوي لغتونه:

تېرمهال- تېروخت احتمالي- له شک او تردید سره

لامبل- ځان مینځل

> **ښوونکي ته لارښووني:**
>
> ۱. ښوونکی دې متن ولولي او د تېر مهال د فعلونو د ډولونو په هکله دې څرګندوني وکړي.
> ۲. متن دې د املاء په توګه په زده کوونکو باندې ولیکي.
> ۳. په ګروپيزه توګه دې په زده کوونکو باندې متن ولولي، ترڅو دوی په پای کې یوبل ته څرګندوني وکړي.
> ۴. د تېرو زمانو توپير دې په مثالونو کې وښيي، بيا دې زده کوونکي هغه په کتابچو کې وليکي.

### د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې متن ولولي او بيا دې په لنډه توګه د هغه مطلب ووايي.
۲. زده کوونکي دې په لاندې جملو کې د ماضي فعلونو ډولونه وښيي او په کتابچو کې دې وليکي.

الف. ملاريا يوه وژونکې ناروغي ده.
ب. که لمر نه وای د ځمکې پر مخ به ژوند نا ممکن و.
ج. بدني روزنه د انسان د روغتيا له پاره ډېر ارزښت لري.
د. ما فکر کاوه چې تا به د حبيب الله ترې ډېر کتابونه لوستلي وي.
هـ. زه به د پاڅون صاحب کتابونه تاته راوړم.

**ارزونه:**

۱. آیا زده کوونکو د تېرمهال فعلونه وپېژندل؟
۲. د تېرمهال فعلونه کارولی شي؟
۳. دتېرې زماني فعلونه له يوبل څخه توپيرولی شي؟

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې متن په لنډه توګه په کتابچو کې وليکي او هغه دې په یاد زده کړي.

# د نشه يي توکو اغېزې



موخې:

١. زده کوونکي د نشه يي موادو په اغېزو او زيانونو وپوهېږي.
٢. متن سم ولولي او سم يې وليکي.

هڅوونکې پوښتنې:

١. آيا تاسو نشه يي توکي پېژنئ؟
٢. د نشه يي توکو په زيانونو پوهېږئ؟
٣. ستاسو په نظر نشه کوونکي خلک سم او مناسب کارونه کوي؟

د تاريخ په اوږدو کې پوهانو د نشه يي توکي په اغېزو ژورې څېړنې ترسره کړې چې په زړه پورې پايلې يې لاس ته راوړې دي. زموږ په چاپېريال کې داسې توکي شته چې ځانته غذايي خواص لري او په بدن کې شحمي، پروتيني، قندي مواد او ډول ډول ويټامينونه منځ ته راوړي، لکه: مېوې، سابه، غوښې، او نور چې د ژوند د پايښت روغتيايي او سوکالۍ سبب کېدلی شي.

زموږ په چاپېريال کې داسې توکي هم موجود دي، چې نه يوازې غذايي او روغتيايي خاصيت او ځانګړنې نه لري، بلکې ډېر تخريبوونکي او وژونکي هم دي. لکه: چرس، بنګ، شراب، ترياک، هېروين، او نور.

هغه انسان چې يو وخت روغ رمټ، د فکري قوت خاوند، د غښتلې ارادې او ښو کړو وړو له امله په خپله ټولنه کې د درناوي او باور وړ وي. د دغو نشه يي توکو په کارولو سره دا توان نه لري، چې له ځايه وخوځېږي. دا خو لا څه چې دخپل ځان او يا کورنۍ له پاره زيار وباسي او اړتياوې يې پوره کړي.

دا اخته کسان خيرن، بوی ناک په هر ځای کې پراته، د خپلو کورنيو له خوا شړل شوي او په کرکه ورته کتل کېږي. دوی يوازې دهغو توکو په فکر کې وي، چې اوس يې بې له هغو څخه آرام ژوند نشته. په هره وسيله چې کولی شي حتی د غلا، او وژنې له لارې هغه نشه يي مواد لاس ته راوړي. دا په نشه روږدي کسان ورو ورو خپله روغتيا او سلامتي له لاسه ورکوي او په ډول ډول ناروغيو اخته کېږي.

په لومړيو وختونوکې بې خوبي، سرخوږي، نا آرامي، درنګ ژېړ والي، يا توروالی، د زړه او د سږو سرطان، د پوستکي ډول ډول ناروغۍ او په پای کې په ليونتوب اخته او دمړيني سبب يې ګرځي.

نوي لغتونه:

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| چاپېریال- | محیط | اخته- | بوخت | بقا- | پایښت |
| کړه وړه- | چارې او عملونه | روږدي- | اموخته او عادت | سوکالي- | آسوده ګي |
| غښتلی- | قوي | هوسايي- | آرامي | | |

**ښوونکي ته لارښوونې:**

۱. ښوونکی دې متن ولولي او د نشه يي توکو په هکله دې پوره معلومات ورکړي.
۲. د نشه يي توکو زیانونه دې زده کوونکي ته بیان کړي.
۳. د نشه يي توکو په هکله دې د اسلام د مقدس دین په رڼا کې وغږېږي، چې زموږ پاک او سپېڅلي اسلام دا توکي منع کړي، ځکه چې دانسان له پاره تباه کوونکي شیان دي.
۴. ښوونکی دې دا متن د املاء په توګه په زده کوونکو باندې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

**د زده کوونکو فعالیتونه:**

۱. زده کوونکي دې متن ولولي او د هغه مطلب دې په ساده وینا بیان کړي.
۲. هغه مواد چې غذایي او روغتیایي خاصیت لري وپېژني، لکه: مېوې، سابه، غوښې او داسې نور شیان.
۳. هغه مواد دې وپېژني، چې نه یوازې غذايي او روغتیایي خاصیت نه لري، بلکې تخریبوونکي او تباه کوونکي دي. لکه: چرس، تریاک، هیروین، شراب او نور.
۴. د نشه يي توکو د کارولو زیانونه دې په خپلو کتابچو کې ولیکي او هغه دې په یاد کړي.
۵. په دې وپوهېږي چې په نشو روږدي کسان په کومو ناروغیو اخته کېږي، چې په پای کې یې د مړینې سبب ګرځي.

**ارزونه:**

۱. آیا زده کوونکو نشه يي مواد او د هغو نومونه وپېژندل؟
۲. زده کوونکي په ټولنه کې د نشه یانو په کړو وړو هم و پوهېدل؟
۳. آیا زده کوونکي د نشه يي موادو د کارولو د زیانونو په هکله څه شی لیکلی شي؟

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د نشې په باب د خپلو کورنیو له غړو سره خبرې وکړي او بیا دې یوه لنډه مقاله په دې هکله په خپلو کتابچو کې ولیکي.

## دوه څلویښتم لوست

# په ځمکه کې بدلونونه

**موخې:**

۱. زده کوونکي دې وپوهېږي چې دځمکې پرمخ او منځ کې لوی او واړه بدلونونه هم منځ ته راځي.
۲. زده کوونکي دې په دې پوه شي چې لوی کمرونه ولې ټوټې ټوټې کېږي؟
۳. د متن لوستل او لیکل.

**هڅوونکې پوښتنې:**

۱. آیا تاسې دځمکې د بدلون په هکله څه فکر کولی شئ؟
۲. تاسې په دې برخه کې څه اورېدلي چې دځمکې پرمخ او منځ کې څه بدلون راغلی وي؟

که مورږ وغواړو چې یوه لویه ډبره ماته کړو. نو هغه به په مارتول ماتوو او که بې له مارتول څخه بله لاره هم شته؟ راځئ چې فکر وکړو او پیدا یې کړو چې دا لوی کمرونه څنګه ټوټې ټوټې کېږي؟

تاسې به لیدلي وي، چې د ژمي په موسم کې که له اوبو څخه ډک منګی بهر پاتې شي د یخنۍ له امله ماتېږي. کله چې اوبه یخې شي حجم یې زیاتېږي، په لوښي کې نه ځایېږي، نو ځکه منګی ماتوي. د لویو لویو کمرونو، ماتېدل هم کټ مټ همدغسې دي.

کله چې باران ورېږي. د باران اوبه د تیږو او ډبرو په درزونو او سوریو کې ننه وزي. د سړو په وخت کې دا اوبه کنګل کېږي. د ډبرو د ماتېدو لامل ګرځي، په دې ترتیب لوی کمرونه ټوټې ټوټې کېږي.

ځینې نورې عملیې هم د کمرونو او ډبرو د ماتېدو سبب ګرځي. ژوندي شیان، لکه دنباتاتو ریښې همدارنګه اوبه او بادونه د غټو او وړو ډبرو د ماتېدو سبب کیدای شي، چې په پای کې له دې ماتو شوو وړو ټوټو څخه ډېره حاصل خیزه خاوره منځ ته راځي، له همدې امله د سیندونو او رودونو ترڅنګه ځمکې ډېرې ګټورې وي. په ځمکه کې دا ډول بدلونونه په ډېره اوږده موده کې را منځ ته کېږي.

نوي لغتونه:

| | | | |
|---|---|---|---|
| ډېره- | تیږه | کنګل - | یخ |
| لوښی- | ظرف | بهر- | د باندې |
| مارتول- | هغه آله ده چې تیږې پرې ماتوي | کمرونه- | پاڼونه |

## ښوونکي ته لارښوونې:

۱. ښوونکی دې متن ولولي او د هغه په هکله دې پوره معلومات وړاندې کړي.
۲. له هغو بدلونو څخه دې هم یادونه وکړي چې د سیلابونو، زلزلو، طوفانونو او نورو پېښو په وسیله منځ ته را غلي وي.
۳. متن دې د املاء په توګه په زده کوونکو باندې ولیکي.
۴. د دغه متن په هم معنا یا مترادفو کلمو باندې دې خبرې وکړي.
لکه: دریابونه، سیندونه، رودونه.
ـ یخ، کنګل.
ـ کمرونه، پاڼونه.
ـ ژوندي، ژوي.

## دزده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې متن ولولي او د هغه په مطلب دې خبرې وکړي.
۲. یو یو تن دې لاندېنیو پوښتنو ته ځوابونه ووایي او بیا دې هغه ولیکي.
الف. اوبه چې په منګي کې کنګل شي، بیا څه پېښېږي؟
ب. لوی کمرونه څنګه ټوټه ټوټه کېږي؟
ج. که د ډبرو او لویو تیږو په درزونو کې اوبه لاړې شي، بیا څه کېږي؟
د. د ځمکې په مخ او منځ کې بدلونونه په څومره موده کې منځ ته راځي؟

## ارزونه:

۱. آیا زده کوونکي و پوهېدل، چې د ځمکې پرمخ او منځ کې ځینې بدلونونه پېښېږي؟
۲. په دې پوه شول، چې لوی لوی کمرونه څنګه ماتېږي؟
۳. متن لوستلی او مطلب یې په خپلو کتابچو کې لیکلی شي؟

## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې متن ولولي، په مطلب دې ځان پوه کړي. بیا دې هغه په یاد زده کړي اوهم دې د متن لنډیز په خپلو کتابچو کې ولیکي.

## درې څلوېښتم لوست

# فعل د بڼې او شکل له مخې

**موخې:**

۱. زده کوونکي فعلونه د بڼې او شکل له مخې وپېژني.
۲. دبڼې له مخې دفعلونو دډولونو پېژندل، په لوستلو اوليکلو کې يې سم کارول.

**هڅوونکې پوښتنې:**

۱. آيا تاسو فعلونه دبڼې له مخې پېژنئ؟
۲. ستاسو په نظر فعلونه دبڼې او زماني له مخې سره توپير لري؟

**فعل د بڼې اوشکل له مخې:**

فعل د کار ولو او ويلو له مخې دا لاندې ډولونه لري:

۱. **د فعل اخباري بڼه:** هغه فعلونه دي چې دکار کول يا کېدل په کې د خبر په ډول وښودل شي، لکه: احمد په آزموينه کې بريالی شو. د آريايانو لومړی ښار بُخدي نومېده. بريالي خط وليکه.

۲. **د فعل امري بڼه:** هغه فعلونه چې کار په کې دامر او فرمان په توګه وښودل شي.
لکه: دلته راشه! او زما خبره واوره. زما کتاب راوړه! هلکه! ورته ووايه چې اوس مه راځه!

۳. **د فعل احتمالي ياشکي بڼه:** هغه فعلونه چې کار دشک په ډول وښيي، لکه: تابه ډوډۍ خوړلې وي؟ ته به هغه ته ووايې چې راشي؟ ته به زما يو ښه ملګری شې؟ ګوندې سباته باران ووربږي.

۴. **د فعل شرطي بڼه:** هغه فعلونه دي، چې کار له يوه شرط سره وښودل شي.
لکه: که درس ووايې، کامياب به شې. که وختې له خوبه پاڅېږې، هر کار به دې ترسره شي. که ته راغلې، هغه خامخا وينې.

۵. **د فعل تمنايي بڼه:** هغه فعلونه دي، چې کار په کې د هيلې او غوښتنې په بڼه وښودل شي، لکه: کاشکې ما استاد ليدلی وی. هيله کوم په ټلېفون کې راسره خبرې وکړې. کاشکې موږ ټول بريالي شو.

نوي لغتونه:

بڼه- شکل
هيله- اميد، غوښتنه
احتمالي- له شک سره
تمنايي- له هيلې سره
بُخدي- د آريايانو په وخت کې د اوسني بلخ لرغونی نوم دی

### ښوونکي ته لارښووني:

۱. ښوونکی دې متن ولولي او د هغه په هکله دې څرګندونې وکړي.
۲. دفعل ډولونه دې د بڼې له مخې په مثالونو کې څرګند کړي.
۳. د دغو برخو پـه هکله دې معلومات وړاندې او زده کوونکي دې پـه خپلو کتابچو کې وليکي.

الف. د فعل اخباري بڼې هغه دي، چې...............................
ب. د فعل احتمالي بڼې هغه دي، چې......................
ج. د فعل امري بڼې هغه فعل ته وايي: ....................
د. د فعل تمنايي بڼې هغو فعلونو ته .............

### د زده کوونکو فعاليتونه:

۱. زده کوونکي دې متن ولولي او دفعلونو بڼې دې په مثالونو کې څرګندې کړي.
۲. زده کوونکي دې دا لاندې جملې د فعلونو په برخه کې وګوري او فعلونه دې دبڼې له مخې وښيي.

الف. ځوانان دې له نشه يي توکو څخه ځان وساتي!
ب. دسګرټو څکول روغتيا ته زيان لري.
ج. که ته پرون راغلی وی، نو دواړو به يو ځای درس ويلی و.
د: کاشکې زما ورور هم دلته وی.
هـ. تا به د احمد شاه بابا له کارنامو څخه يو څه اورېدلي وي؟

د فعل شکي يا احتمالي بڼه ـ امري بڼه ـ خبري بڼه ـ شرطي بڼه ـ اود فعلونو تمنايي بڼه

### ارزونه:

۱. آيا زده کوونکي و پوهېدل چې فعلونه د بڼې له مخې کوم دي او څو ډولونه لري؟
۲. آيا زده کوونکي په ليکلو او لوستلو کې فعلونه د بڼې له مخې سم کارولی شي؟

### کورنۍ دنده:

زده کـوونکـي دې مـتـن ولولي او هغه دې په خپلو کتابچو کې وليکي او بيا دې هغـه پـه ياد زده کړي.

## څلورڅلوېښتم لوست

# کار وکړئ سوال مه کوئ!

موخې:
١. د کار کولو په ارزښت د زده کوونکو پوهېدل.
٢. زده کوونکي د کار اوبېکارۍ په پایلو باندې وپوهېږي.
٣. زده کوونکي دې وپوهېږي، چې کارکول تر سوال کولو غوره دي.

هڅوونکې پوښتنې:
١. آیا تاسې له کارکولو سره مینه لرئ؟ کوم ډول کارونه مو خوښېږي؟
٢. تاسو څه فکر کوئ چې کار کول او زیار ښه دی که په سوال سره د یوڅه پیدا کول؟
٣. کار کول سربېره له ګټې څخه زموږ روغتیا ته هم کومه ګټه لري؟

یوه ورځ محمود له خپل پلار سره روان و. یوه هلک سوال ترې وکړ. د محمود پلار ترې تېر شو، خو محموددوه روپۍ ورکړې. لږ چې مخکې ولاړل. پلار یې ورته وویل: بچیه! خیرات ورکول ډېر ښه کار دی، خو ړندو، ګوډانو، ناروغو او بېوزلو خلکو ته زیات ثواب لري.

زه هره ورځ دغه هلک وینم، چې سوال کوي. په سوال کولو روزي پیدا کول ښه کار نه دی. حضرت رسول اکرم (صلی الله علیه وسلم) داسې لار ښوونه کړې ده: ((خپله روزي د کار اوزیار په وسیله وګټئ، سوال مه کوئ.))

له حضرت انس (رضی الله تعالی عنه) څخه روایت دی، چې یو انصاري حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) حضور ته راغی. ویې ویل: ((ای د الله حبیبه! ماته یو څه راکړه.)) رسول الله (صلی الله علیه وسلم) وفرمایل: چې ((په کور کې څه لرې؟)) سوالګر وویل: یوه شړۍ لرم او یوه د لرګي کاسه، چې اوبه په کې څښو.

حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) ورته وفرمایل: ((دواړه راوړه!)) هغه دواړه راوړل.

حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) وفرمایل: ((دا دواړه څوک اخلي؟)) یوه سړي وویل زه یې په یوه روپۍ اخلم. د خدای (جل جلاله) پیغمبر صلی الله علیه وسلم) بیا وفرمایل: ((څوک یې له دې څخه ګران اخلي؟)) بل سړي وویل زه یې په دوه روپۍ اخلم.

رسول الله (صلی الله علیه وسلم) هغه شیان ورکړل او روپۍ یې انصاري ته ورکړې. ویې ویل: ((چې په یوې روپۍ خوراکي شیان واخله او په بله روپۍ یو تبر واخله او ماته یې راوړه!))

انصاري تبر راوړ او حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) په مبارکو لاسونو په خپله هغه ته لاستی ور واچاوه. بیا یې وفرمایل: چې ځه لرګي وهه او خرڅوه یې. پنځه لس ورځې دې ونه ګورم.

انصاري دا کار کاوه. او له پنځه لسو ورځو وروسته حضور ته راغی، چې حال یې ډېر ښه شوی و. حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) وفرمایل: ((دا کار کول تاته له سوال کولو نه غوره دی، ځکه چې سوال کول به د قیامت په ورځ ستا پرمخ تور ټکی وي.)) (ذغه حدیث)

نوي لغتونه:

سپما- ذخیره　　غوره- بهتر او منل شوی　　تورټکی- عیب او شرمندګي

**ښوونکي ته لارښوونې:**

۱. ښوونکی دې متن ولولي او په هغه دې خبرې وکړي.
۲. ښوونکی دې په دې هکله خبرې وکړي، چې کار کول زموږ د بدن غړي ښه په حرکت راولي او زموږ سلامتیې ته ډېره ګټه رسوي.
۳. ښوونکی دې متن په زده کوونکو باندې د املاء په توګه ولیکي.
۴. ښوونکی دې د کیسې مطلب په لنډه توګه بیان او د حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) لارښوونو ته دې د زده کوونکو پام را واړوي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې متن ولولي او د هغه په مطلب دې خبرې وکړي.
۲. زده کوونکي دې د لاندېنیو جملو تش ځایونه د چوکاټ په مناسبو کلمو په خپلو کتابچو کې ډک کړي.

الف. کارکول له ................. کولو څخه ډېر بهتر او غوره دي.
ب. کار وکړئ او له چا څخه سوال ........................ .
ج. مسلمانانو ته نبايي.................... وکړي او د خپلو متو په زور ځانته روزي پیدا کړي!
د. خیرات ورکول ........................................ ته ډېر زیات ثواب لري.

ګوډانو، ړندو، ناروغانو، او بېوزلو- سوال، کار- کارکول- مه کوئ

**ارزونه:**

۱. آیا زده کوونکي متن سم لوستلی شي؟
۲. زده کوونکي ویوهېدل چې کار تر سوال کولو غوره دی؟
۳. زده کوونکي پوه شول چې د اسلام ستر لارښوونکي حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) هم د کار کولو په وسیله د روزي پیدا کول ډېر غوره بللي دي؟
۴. زده کوونکي په دې هم و پوهېدل چې کار روغتیا او سلامتیې ته ډېره ګټه لري؟
۵. زده کوونکي د جملو تش ځایونه په مناسبو کلمو سره ډکولی شي؟

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د لاندې پوښتنې ځواب په خپلو کتابچو کې ولیکي او هغه دې په یاد وواېي.
زموږ ستر لارښوونکي حضرت محمد (صلی الله علیه وسلم) د کار کولو په هکله څه فرمایلي دي؟

پنځه څلوېښتم لوست

# څیرک سوالګر

موخې:

۱. د ټوکې په مفهوم باندې پوهېدل.

۲. زده کوونکي وکولی شي چې ټوکې ووايي.

۳. د متن لوستل او ليکل.

هڅوونکې پوښتنې:

۱. د تاسو په فکر سوال کول څه ډول کار دی؟

۲. ولې ټول خلک سوال نه کوي؟

یوه سوالګر چې نه یې غوښتل د سوالګر په څېر معلوم شي یو ماښام د یوه کور په څنګ کې د کور تر کړکۍ لاندې ودرېد. کله چې د کور مېرمن یې په کړکۍ کې ولیده، پوښتنه یې ځینې وکړه چې: خورجانې! که یوه ستن ولرې اړتیا ورته لرم رایې کړه!

مېرمنې ورته وویل: ((ستن لرم خو که در وایې چوم در څخه ورکه به شي، ځکه چې تیاره ده.)) سوالګر ورته وویل: ((مهرباني وکړه په یوه ټوټه ډوډۍ کې یې وټومبه را وایې چوه او زه به یې په دې توګه واخلم.))

نوي لغتونه:

| | | | |
|---|---|---|---|
| سوالګر- | سوال کوونکی | ټومبل- | په یوه شی کې ټینګول |
| ځنې- | له هغه څخه | | |

**ښوونکي ته لارښوونې:**

۱. ښوونکی دې ټوکه ولولي او دهغې په مطلب دې خبرې وکړي.
۲. ښوونکی دې د زده کوونکو پام دې خبرې ته را واړوي چې سوال کول ښه کار نه دی، ځکه سوالګر شرمېده چې ستن یې پلمه کړه.
۳. ښوونکی دې دا کلمې پر تخته ولیکي او له زده کوونکو څخه دې وغواړي چې یوه یوه مناسبه جمله ورته جوړه کړي.
الف. اړتیا ب. غوښتل ج. مېړمن هـ. ماښام و. مهرباني

## د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې ټوکه ولولي او هغه دې په تمثیلي توګه اجراء کړي.
۲. زده کوونکي دې د غو لاندې پوښتنو ته ځواب ور کړي:

الف. سوالګر ستنې ته اړتیا درلوده؟
ب. آیا سوالګر په ماښام کې ستنې ته اړتیا درلوده؟
ج. سوالګر ولې غوښتل، چې سوالګر معلوم نه شي او ډوډۍ هم لاسته راوړي؟

**ارزونه:**

۱. زده کوونکي وپوهېدل، چې سوال کول دهر چا له پاره ښه کار نه دی؟
۲. زده کوونکي کومه بله ټوکه د نورو زده کوونکو په مخ کې ویلی شي؟
۳. آیا زده کوونکي متن لوستلی او لیکلی شي؟

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې دا ټوکه په یاد زده کړي او په خپلو کتابچو کې دې په ښکلي خط سره ولیکي.

شپږ څلوېښتم لوست

# بشر دوستي

موخې:

١. د بشر دوستۍ په معنا او مفهوم باندې پوهېدل.
٢. په زده کوونکو کې دبشر دوستۍ د حس روزنه او پیاوړتوب.
٣. د متن لوستل او لیکل.

هڅوونکې پوښتنې:

١. ولې موږ ته لازمه ده، چې دبشر دوستۍ په راز وپوهېږو؟
٢. ستاسو په فکر ویلی شئ، چې بشر دوستي په ټولنه کې څه ارزښت لري؟

څرګنده ده، چې انسان په ټولنه کې یو زیار کښ موجود دی اود بشري ستونزو د لېرې کولو له پاره د نه هېرېدونکو خدمتونو ویاړ لري. نو باید د ژوند په ټولو چارو کې له یوبل سره مرسته، همکاري او دستونزو په وخت کې خواخوږي ولري.

څنګه چې موږ انسانان یو نوښتیي، چې له انسانانوسره مینه او محبت خپله بشري فریضه وبولو او په دې عمل وکړو، چې هرانسان دعزت او درناوي وړدی.

په خپلو کړو وړوکې له خوږواومناسبو وینا وو څخه کار واخلو. له بلې خوا د خپل بشري توان سره سم له هر انسان سره په زړه پورې او لازمې مرستې وکړو، ځکه چې دا د انسانیت تر ټولو غوره مقام دی.

انسان ته ښایي یوازې د خپلې سوکالۍ او نیکمرغۍ په فکر کې نه وي، بلکې په نورو هم دا پیرزوینه ولري.

وګورئ رحمان بابا دبشر دوستۍ دا لوړ احساس په څومره خوږوالي سره په دې بیت کې ځای کړی دی:

هغه زړه به له طوفانه په امان وي
چې کښتۍ غوندې د خلکو باربردار شي

نوي لغتونه:

| | | | |
|---|---|---|---|
| پیاوړی- | غښتلی | ټولنیز- | اجتماعي |
| چاپېریال- | محیط | ستونزې- | کړاوونه |
| خواخوږي- | همدردي | درناوی- | درنښت |
| پېرزو- | لورینه | غوره- | په زړه پورې |

**ښوونکي ته لارښوونې:**

۱. ښوونکی دې متن ولولي او په دې برخه کې دې معلومات وړاندې کړي.
۲. متن دې په زده کوونکو باندې د املاء په توګه ولیکي.
۳. د رحمان بابا بیت دې معنا او دهغه په هکله دې څرګندونې وکړي.

## د زده کوونکو فعالیتونه:

۱. زده کوونکي دې متن ولولي او په مطلب دې خبرې وکړای.
۲. په خپلو کړو وړو کې بشر دوستي څه ډول ښودلی شې؟
۳. لاندې جملې دې د چوکاټ په مناسبو کلمو سره په خپلو کتابچو کې بشپړې کړي.

الف. انسانان د ژوند په ټولو چارو کې له یو بل سره .............. ولري.
ب. په خپلو خبرو اترو کې له .................... ښخه کار واخلو.
ج. هغه زړه به له ............... په امان وي.
د. چې کښتۍ غونډې د ............................ باربردار شي.

| ښوالفاظو، | خلکو، | طوفانه، | خواخوږي |
|---|---|---|---|

**ارزونه:**

۱. زده کوونکي متن لوستلی شي؟
۲. دمتن په مطلب پوه شوي او دبشر دوستۍ په هکله خبرې کولی شي؟
۳. د بشر دوستۍ په هکله یوه لنډه مقاله لیکلی شي؟

**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې د مرسته، خواخوږي، درناوي او بشر دوستۍ کلمې په مناسبو جملو کې راوړي او په خپلو کتابچو کې دې ولیکي.

اووه څلويښتم لوست

# د وطن ترانه

موخې:

۱. زده کوونکي د هېواد په ارزښت وپوهېږي او په راتلونکي مهال کې د زړه له کومې خپل هېواد ته خدمت وکړي.

۲. دلاندې شعر سم لوستل او په معنا يې پوهېدل.



هڅوونکي فعاليتونه:

۱. ستاسو په فکر وطن څه معنا او مفهوم لري؟

۲. ولې په هر چا باندې خپل وطن ګران دی؟

۳. موږ ولې بنايي خپل وطن وساتو؟

دا وطـن ودان وطــن          دا د لــوی افــغـان وطــن

داپـرموږه ګــران وطــن

خـاوره دغـېرت ده زلزلـې لـري طـوفان لـري

غـرونـو کـې بـازان لـــري

شــور يــې پـه سيندونـوکـې          تـاو يـې لـويـو غـرونوکې

مـينـه يې پـه زړونوکې

خيـژي لـه سينې، دهر افغـان ولـولې لـري

بـــلــې يــې لمبې لـري

اوسـي افـغانان په کې          نـسل اتـلان پـه کـې

واړه سـربـازان پـه کـې

ڼـاري يـې د غــرو او ڇـت سرونـه لـه آسـمان سـره

نـنـګ او لـه ايـمان سـره

سليمان لايق

نوي لغتونه:

ولولې- شور اوغوغا

بازان- ګوربت

اتلان- قهرمانان

ټاټوبی- وطن يا د اوسيدو ځای

سربازان- سربښندونکي

ځاري- ځارنه يې کوي، يا ساتنه يې کوي

ښوونکي ته لارښوونې:

۱. ښوونکي دې د وطن ترانه په مناسب وزن سره ولولي او بيا دې معنا کړي.
۲. د وطن د مينې په هکله دې خبرې وکړي.
۳. د نورو خبرو په ترخ کې دې متل ته اشاره وکړي او د هغه په هکله دې څرګندونې وکړي!
«هر چاته خپل وطن کشمير دی»
۴. دا شعر دې په زده کوونکو باندې د املاء په توګه وليکي.
۵. دا شعر دې په زده کوونکو په ياد زده کړي.

دزده کوونکو فعاليتونه:

۱. زده کوونکي دې ترانه په ډله ييزه توګه په لوړ آواز ولولي!
۲. د دې ترانې هم وزنه کلمې دې پيدا او په خپلو کتابچو کې دې وليکي!
۳. د ترانې مطلب دې په نثر وليکي!
۴. د وطن دوستۍ مينه دې د احمد شاه بابا په اشعارو کې وګوري. هغه دې په کتابچو کې وليکي او له ياده دې زده کړي.

که هرڅو مې د دنيا ملکونه ډېر شي
زما به هېرنه شي دا ستا ښکلي باغونه
احمد شاه به دغه ستا قدر هېر نه کا
که ونيسي د تمام جهان ملکونه

ارزونه:

۱. آيا زده کوونکي د وطن ترانه په ډله ييزه توګه له ياده ويلی شي؟
۲. آيا زده کوونکي د وطن دوستۍ په مطلب و پوهېدل؟
۳. زده کوونکي د لوست کلمو ته جملې جوړولی شي؟
لکه: (ملکونه، باران، سيندونه، تاو، لمبی)

کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د وطن په هکله يوه ښه مقاله په خپلو کتابچو کې وليکي او بيا دې خپلو ټولګيوالو ته ولولي.

# د پوهنې ترانه

پوهنه ده رڼا — وطن ته موښکلا
کتاب او قلم — زموږه رهنما

پوهنه ده رڼا، وطن ته موښکلا
کتاب او قلم زموږه رهنما

وطن زما يې ځان — له تانه شم قربان
ته وينه د افغان — ته لوړپه ټول جهان

پوهنه ده رڼا، وطن ته موښکلا
کتاب او قلم زموږه رهنما

آباد اوسې آباد — وطنه ته شې ښاد
موږ سربښندو په تا — او ساتو دې آزاد

پوهنه ده رڼا، وطن ته موښکلا
کتاب او قلم زموږه رهنما

ته کور يې هم مو ګور — ته پلار يې هم مو مور
ته زړه يې د آسيا — او زما د سترګو تور

پوهنه ده رڼا، وطن ته موښکلا
کتاب او قلم زموږه رهنما

ته ننګ يې دآريا — او تاج يې د يما
ځاريږمه له تا — افغانستان زما

پوهنه ده رڼا، وطن ته موښکلا
کتاب او قلم زموږه رهنما

محمد مُعين مرستيال